# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه

د ۱۳۹۳ ش کال لومړۍ ګڼه
(حمل - ثور)





**یوه میاشت د صادق هدایت سره**

"علامه حبیبي"

**اکبرنامه**

**د متن څېړني په بهیر کي د علامه حبیبي لومړۍ هڅه**

"مطیع الله روهیال"

لوی استاد علامه حبیبي!

د یوه ملګري د مکتوب جواب:

## ماښجن یار ته

وطن مې ستا له لاسه پرېښو
خلک به وايي د نېستۍ له لاسه ځینه!

**تا راته وویل: راسه! زه درغلم.**

**زما ستا پر خبره ویساوه، او ته مې خپل دوست ګڼلې!**

**تا زما سره ټینګې وعدې وکړې، ویل دې: زه ستا مړوند یم! ستا پر خوا یم، ورسه! هغه زړې کوډلې ونړوه او زما له پاره نوې ماڼۍ بنا که!**

**ما هم لېځې راوغښتلې، ستا په خدمت کې مې شپه او ورځ پر ځان یوه کړه. رقیبانو په ما خپړې ولګولې، ما هم تا ته پناه دروړه، ستا په کور درننوتلم، په ننواتو درغلم! مګر تا پر مخ ووهلم.**

**رو یبار زه درته وغندلم او ستا په مخ کې تور کړم، ګرېوان ئې راځیري کی او دا داستان ډېر اوږد دئ...**

**وروسته ما ولیده، چې ته هم ما ته په ښه سترګه نه ګورې او ماښجن یې! ستا وعدې ټولې بېکاره ولاړې او زه له رقیبانو سره پر میدان سرې اترې ودرېدم. ما به تا ته نارې وهلې، مګر تا هیڅ نه اورېده...**

**تا به ویل: ته زموږ مشر یې، دردمخه سه! زه چې به پر مخ تلم، تر شا به مې هیڅوک نه وه.**

**، وروسته ما د زمانې تېرو پاڼو ته رجوع وکړه، ومې لیدل چې: یوازې زما سره دغه چم نه دئ سوی، بلکې هر څوک چې تا دمخه کړی دئ، بیا دې نه دئ پاللی او په رقیبانو دې ټکړې ټکړې کړی دئ... ما ته د تېرو مېړو روح راړغ کړه، چې په دې تشو خبرو مه تېروزه! ځې کوې، دا د غم داستان اوږد دئ او تر اوسه لا هم تا د اروېدلو غوږ نه دئ موندلی.**

آن نیست که من هم نفسان را بگذارم
باآبلـه پایان چکـــنم قافـلـه تیز است

***





# کندهار

علمي، تاريخي، ادبي او ټولنيزه مجله

د امتياز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ رياست

**دريمه دوره**
**د ۱۳۹۳ش کال لومړۍ ګڼه (ورى - غويى)**
**پرله پسې ٦٢ مه ګڼه**

مؤسس
**محمدولي زلمی**

سرپرست چلوونکی
**مطيع الله روهيال**

کتنپلاوی
ډاکټر عبدالرازق پالوال
څېړندوی شېرشاه رشاد
حيات الله رفيقي
عبدالکريم طالب
فضل محمد پنهان

کمپيوټر چاري
**عثمان عاصي**

پته
علامه حبيبي واټ
د اطلاعاتو او فرهنګ رياست
د کندهار مجلې دفتر
ټليفون: ۳۰۰۱۴۴۰


**څو ضروري يادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زيانمني ليکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني ليکني معيار سره سم د ليکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي ليکني بيرته نه ورکول کيږي.
- هره ليکنه د ليکوال خپل نظر څرګندوي.


**په هيواد او دباندي کي د مجلې بيې**

هيواد: ۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۵۰ - کلداري

**کلنۍ ګډون**

هيواد: ۱۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۳۰۰ - کلداري

نور هيوادونه: ۸۰ - امريکايي ډالره

# فهرست

## څېړنه



## شعرونه



## ترجمه



## خاطرې

# د حق دښمني

د بطحا او یثرب په ریگستاني تودو ځمکو کې خلک بتانو ته پر سجدو پراته وه، او د انساني اقتدار پرستش ئې کاوه.

یو یتیم او بېوزلي انسان پیدا سو، خدای د حقیقت لیدو سترگې ورکړې، رغ ئې وکی: بې له خدایه بل د پرستش وړ نسته، هو خلکو! د خدای پرستش وکئ! دا بتان مات کئ! دا د حق رغ وو، مگر جاهلان نه پوهېدل، هغو به ویل:

دا سړی لېونی دئ. کاهن دئ.

د ده په لار کې به ئې اغزي پاشل. بد به ئې ورته ویل. د وژلو اقدام به ئې کاوه.

***

دا د حق دښمني وه، مگر: "والله متم نوره و لو کره الکافرون".

***

څو زره کاله پخوا د یونان په کوڅو کې یو جگ کړو ږښتی سړی گرزېد، دی به ولاړ وو خلکو ته به ئې لار ښووله.

دښمنانو دا سړی بد باله. ځکه چې دی د (حق) پر خوا وو په آخر کې زهر په وخواړه. سقراط مړ سو، خو د ده رغ تر اوسه په نړۍ کې گرزي.

دا هم د حق دښمني وه.

***

اتیا کاله دمخه د کونړ له درو څخه یو سید راووتی، ده د حق آواز لوړ کی، خو د حق دښمنانو پسي واخیست. تر هند، تهران، مصر، استانبول ئې تېر کی.

سید جمال الدین هم په زهرو مړ کړه سو، مگر اوس خلک پوهېږي چې دی پر حقه لار روان وو.

دا هم د حق دښمني وه.

خو اوس هغه خلک پر هغه لاره روان دي، چې سید روان وو.

الحق یعلو و لا یعلی.

***

موږ د حق رغ ژر نه اروو او سترگې مو پټې دي. ډېر ځله (حق) د یتیم، درویش، وارسته سړي په خوله ویل کېږي، مگر خلک وایي: دا حق نه دئ.

پسله څو ورځو چې عالم د منتقم د نامه مظهر سي نو خلک وپوهېږي، چې (حق) له چا سره وو او څنگه دښمني ورسره وسوه.

انسان باید سترگې خلاصي کړي، او حق ته د حق په سترگه وگوري، د حق دښمني، انسانان خواروي، نابود کوي ئې، حق بین حق وایي، او ځي... که چا نه وارووېد، په خپله به د خپل عمل جزا ووینې....

والسلام علی من اتبع الهدی



استاد عبدالباري جهاني/امریکا

# پایلوچان او عیاران



په دې وروستیو وختونو کې د کندهار د پایلوچانو په باب ځیني لیکني سوي دي چې سړی تبصرې لیکلو ته مجبوروي. په دې تازه شپو ورځو کي د اسدالله زړه سواند په نوم، د کندهار یوه ځوان، د کندهار پایلوچان تر عنوان لاندي یوه نسبتاً مفصله څېړنه کړې ده. که څه هم چي دا لیکنه هیڅ ډول تاریخي شواهد نه وړاندي کوي او هیڅ ډول استناد نه لري، او سړی ئې له تحقیقاتي پلوه ډېره د توجه وړ نه سي بللای؛ خو همدغه لیکنه په خپله شل دېرش یا پنځوس کاله وروسته، چي زموږ راتلونکو نسلونو ته به، زموږ زمانې ته د نژدې پېښو په باره کي، موثق اطلاعات نه وي، په یوه سند تبدیلېږي او ښایي، په هغه وخت کي، زموږ د راتلونکو محققینو او څېړونکو د ګمراهۍ سبب سي.

دا نسبتاً مفصله لیکنه، چي داسي ښکاري د یوه علمي سیمینار له پاره ترتیب سوې وي، تقریباً له سره ترپایه پر احساساتو ولاړه ده او چي په دنیا کي څه ښېګڼي دي هغه ئې پایلوچانو ته ور په برخه کړي دي. لیکوال د خپل مضمون په لومړي مخ کي لیکي: «دلته په کندهار کي د ظلم او ستم سره ډول ډول مبارزې سوي دي، چي د هغو د ډلي نه یوه یې د نامیانو (پایلوچانو) او ځوانمردانو نهضت دئ، چي د خلکو د ګڼو پرګنو د آرمانونو په پار ئې اوږدې مبارزې کړي دي. د بې وسو لاسنیوی ئې کړی دئ او د

زورمندانو او ستمګرانو پر ضد درېدلي دي. هغو داسي يو نظام درلود چي ستمګرانو په ټول قدرت چي ئې درلود بيا هم د دوی نه ډارېدل».

ليکوال حتی په کندهار کي د صفوي امپراتوری د ګورنر ګورګين په مقابل کي د ملي پاڅون افتخار هم پايلوچانو ته ورکوي او وايی چي دغه ناميان خپلو دښمنانو د پايلوچانو په نوم يادول. البته ما دغه معلومات په هيڅ تاريخي متن کي نه دي لوستي او له دغه مضمون څخه پرته بل په هيڅ متن کي راغلي هم نه دي. ليکوال به دغه معلومات له کومه کړي وي؛ سړی نه پوهېږي. ليکوال په خپل دغه مضمون کي ادعا کوي چي کله احمدشاه بابا قدرت ته ورسېدی نو د پايلوچانو ئې ډېر قدر وکړ. د هغوی د درناوي له پاره ئې د جشن او ښادۍ په توګه يوه ځانګړې ورځ وټاکله او هغوی ئې ښه او رښتوني خلک وبلل. هغه دغه خلک د شاه مقصود په نامه يوه سيمه کي استوګن کړل چي اوس د کندهار په شمال کي د ډېرو ښو سيمو څخه ده. البته د احمدشاه بابا په اړه هيڅ بل تاريخي متن کي دا معلومات نسته او يقيناً چي زموږ د ځوان ليکوال د خپل خيال محصول دئ.

زموږ ځينو مؤرخينو عيار او کاکه او پايلوچ يو شان خلک بللي دي؛ او څرنګه چي دوی عيارانو ته يو ډول خاصه عقيده درلوده نو ټول هغه مثبت صفتونه چي د عيارانو له پاره ذکر سوي وه هغه ئې کاکه او پايلوچ ته ورانتقال کړي او هغوی ئې د ټولني د يوه مثبت عنصر په حيث پېژندلي دي. مرحوم مير غلام محمد غبار، وروسته له هغه چي عياران د ټولو اجتماعي، اخلاقي او مذهبي ښېګڼو څښتنان بولي، دا هم زياتوي چي عيارانو د خارجي يرغلګرو او د ملاکانو د طبقې او دولت پر ضد مبارزه کوله. (افغانستان در مسير تاريخ: ۹۰مخ)

مرحوم غبار وروسته د کابل د کاکه ګانو په باب ليکي چي دغو خلکو تر شلمي پېړۍ پوري ژوند کړی دئ او په کابل کي د کاکه او کندهار کي د ځوان په نوم يادېدل... هغوی کله کله يو په يو وسله وال جنګونه سره کول او چي څوک به ټپي سو نو حکومت ته ئې اطلاع نه ورکوله... کله چي به چا غوښتل چي د کاکه ګانو په ډله کي شامل سي نو ځيني شرايط به ئې پر ځای کول او هغه دا چي د کاکه ګانو په مخصوصو جامو کي به ئې په يوازي سر د ټول ښار دوره کوله او د کابل په نورو سيمو کي به د نورو کاکه ګانو مخي ته تېرېدی. که به کوم بل کاکه رغ ورباندي وکړ نو دی مجبور وو چي له هغه سره جنګ وکړي. که به په جنګ کي بريالی سو او بيرته به ئې ځان خپلو ملګرو ته ورساوه نو د کاکه ګانو په ډله کي به منل کېدی او که به چيري مات سو او وبه تښتېدی او يا به په جنګ کي ووژل سو نو نوم به ئې هير سو. کاکه ګان مجبور وه چي تر يوې سلسلې آزموينو تېر سي. د شپې په هديرو او غرونو کي وګرځي، او له خلکو سره د ځاني او مالي ستونزو په وخت کي مرسته وکړي. کاکه ګانو يوه بل ته شيربچه ويل او کله کله به ئې د مقاومت د ښودلو له پاره ځانونه د آسونو په څير نالول. مرحوم غبار وروسته ليکي چي دا

کسان ډېر پاک او سپېڅلي وه؛ پر قول ټینګ وه، له محتاجانو سره مرسته ئې د ژوند شعار وو او ډوډی ئې له خپل کسب او کار څخه تر لاسه کول(هغه کتاب: ۹۱-۹۰ مخونه). مرحوم غبار وروسته لیکي چې په پای کې کاکه ګي هم خرابه سوه او ډېر بد خلک دغه صف ته ور ننوتل.

دغه راز مرحوم عبدالحی حبیبي هم د عیارانو د ښو صفاتو د یادولو په ترځ کې لیکي چې د دې ځوانمردانو پاته شوني تر دې وروستیو وختونو پوري د افغانستان په ښارونو کې موجود وه. دا کسان ئې په کابل کې کاکه، په قندهار کې ښه ځوان او په شمالي ولایاتو کې آلوفته بلل. دوی خاص ډول جامې اغوستلې او خاص ډول اخلاق او سلوک ئې درلودل، خو اوس ئې د خپلو تېرو نسلونو ښه صفتونه هېر کړي دي او لوچکان ورڅخه جوړ سوي دي (افغانستان بعد ازاسلام: ۶۱۳مخ).

زه خپلو دواړو مشرانو ته د ټول درناوي سره وایم چې که زیات و کم شپیته کاله مخکې د هغوی په ځواني کې رښتوني پایلوچان نه وه او ځای ئې هسې لوچکانو نیولی وو نو دا رښتوني پایلوچان په کوم وخت کې وه. په دې کې هیڅ شک نسته چې هره اجتماعي پدیده د خاصو اجتماعي، اقتصادي او سیاسي شرایطو محصول وي. د مرحوم حبیبي او مرحوم غبار د زمانې څخه پنځوس کاله مخکې، پنځوس کاله وروسته او بیا زموږ تر زمانې پوري به د کندهار او شاوخوا سیمو او دغه راز د کابل او شاوخوا سیمو په ټولنیزو شرایطو کې، چې احتمالاً به ئې دغه پاک او سپېڅلي کاکه ګان او پایلوچان منځته راوړي وي، څه تغیرات راغلي وي چې نور نو د پاکو او د مظلومانو د حقوقو د مدافع پایلوچانو وظیفه پای ته رسېدلې او ځای ئې لوچکانو نیولی وي. که پنځوس یا سل کاله مخکې په کندهار او کابل کې رشوت، خیانت، ظلم او تیری موجود وو، او پایلوچان د هغو شرایطو سره د مبارزې او د مظلومانو د حقوقو د اخیستلو له پاره منځته راغلي وه نو پنځوس کاله مخکې خو که ظلم او خیانت ډېر سوی نه وي کم سوی خو په هیڅ صورت نه دئ. کومو مساعدو شرایطو هغوی منځته راوړي او کومو نامساعدو شرایطو د هغوی مقدسه وظیفه پای ته ورسول؟ مرحوم غبار وایي چې کاکه ګانو به د خپل مقاومت د آزمېیلو له پاره، کله کله، ځانونه د آسونو په څېر نالول. لومړی خو دا غیر ممکنه خبره ده؛ ځکه چې سړی نال کړې د تل له پاره ګوډېږي، او یا ښایي د ډېر درد له لاسه ساه ورکړي. او که چیري دا خبره، د یوه لیري حقیقت په حیث، ومنو نو دا څه کمال دئ. دا له انسانیت او انساني کرامت سره کله اړخ لګوي؟ او دغه راز یوه غیر انساني کارنامه کله په افتخار ارزي.

زما د معلوماتو له مخي پایلوچان په کندهار کې تر څه کم یوې پېړۍ زیات تاریخ نه لري او سترو مشرانو ئې، چې په سندرو کې ستایل کېدل، زیاتره زموږ په زمانه کې ژوند کړی دئ. پایلوچان، زموږ د مشرانو د ادعا پر خلاف، له لویه سره بېکاره او بد عمله خلک وه. هغوی په غلا، قمار او له خلکو څخه په زور د پیسو په اخیستلو ګوزاره کوله. هغوی سپې

جنگول، کرکان ئې جنگول، یو له بله ئې جنگونه کول، قتلونه ئې کول؛ کلونه ئې د کندهار او کابل په بندیخانو کې تېرول(نه د مظلومانو له حقوقو څخه د دفاع په گناه، بلکې د وږو او لوږو جنایتونو د مرتکبېدلو په گناه).

په دیارلس یا څوارلس کلنۍ کې، زما هغه سندره تقریباً ټوله په یاد وه چې د کندهار د پایلوچانو په ستاینه کې ویل سوې وه. له بده مرغه چې هغه اوږده سندره مې اوس په حافظه کې نسته او یوازې یوه لړه برخه مې په یاد ده. البته له دغې لړې برخې څخه هم سړی یو څه اټکل کولای سي چې پایلوچان څه ډول خلک وه.

داسي زمـــریان دي اقـــرار نه کـــوي
ســهار تر ماښـــامه شلاخي(شلاقي)قبلوي
نیني فقـیر په جنگ کي د چـــړې وو پهلوان
غوثو دي مولا و بخښي په روی د سپین قرآن
شهین د انســانانو پیرو ډېر راباندي گـــران
را پیش که دا خوني زمری خانان د کوکـــران
نامي حسام الدین قصاب غوایي حـــلالوي
ســــــهار تر ماښـــامه شـــلاخي قبلوي

د اوږده نظم د دې لنډې نمونې څخه سړی د ټولو پایلوچانو په باب ښه قضاوت کولای سي. نیني د چړې په جنگ کې پهلوان دئ او طبیعي خبره ده چې په کندهار کې به ئې خپل سیالان په چړو وهل. غوثو د ښکارپر په دراوزه کې یو آزاري سماوارچي پایلوچ وو چې هیڅوک پر لاري سم ورڅخه تېرېدلای نه سو. پیرو خپل د ښار خلک دونه آزار کړي وه چې د انسانانو د شهین لقب ئې گټلی وو او خانان ته خو د خوني زمري نوم ورکړه سوی دئ. څرگنده خبره ده چې فرنگیا ن به ئې نه وه وژلي او په کندهار کې به ئې قتلونه کړي وه.

دلته به موږ د صفت کومه خبره پیدا کړو. د خونیانو او آزاریانو دې ډلې ته به څرنگه د نهضت په سترگه وگورو او څرنگه به دا وویلای سو چې هغوی د خپلو پراخو پرگنو د آرمانونو له پاره مبارزې کولې. په کندهار کې د پایلوچانو د ستاینې له پاره دغه راز نورې ډېرې سندرې ویل سوي دي خو په یکې یوه سندره کې د هغوی د سخاوت، پاکۍ او له مظلومانو سره د مرستو یادونه نه ده سوې. منگی لالو، گردی امان الله، جگ نظر، میرشو دوست ماد، شین عبدالکریم، پیرو (د انسانانو شهین) خروار او دغه راز نور پایلوچان زموږ د زمانې خلک وه او ټول مې لیدلي دي.

په ۱۹۷۶او ۷۷ کلونو کې، چې زه د پوهنې په وزارت کې د خارجي مرستو عمومي مدیر وم، د پوهنې وزارت ته څرمه، د ده افغانان په خوله کې، د منگي لالو سماوار ته، په هفته کې یو یا دوه ځله، د غرمنۍ چاینکۍ له پاره ورتللم. د منگي لالو سماوار د کندهار د ځینو پایلوچانو د ناستي او د غرمنۍ ځای وو. ما به د نیم ساعت او کله د یو څه زیات وخت له پاره د هغوی پر خبرو غوږ نیوی. زه ښایي په دوه کاله کې تر دېرش ځله زیات دغه سماوار ته ورغلی یم. ما په دې دوو کلونو کې یوه ورځ هم له دوی څخه د کوم سخاوت، له کوم مظلوم سره د مرستي او یا د کوم ښه کار کیسه نه ده اورېدلې. هغوی د ورځني ژوند کیسې کولې او کومي کیسي چې ئې په یو څه اورېدلو ارزېدې هغه د جنگونو، د لښتي د کلک والي او د ده مزنگ او کندهار د محبس خاطرات وه. په

خپله منګي لالو هم د کابل د ده مزنګ په بندیخانه کې ډېر کلونه تېر کړي وه. ویل کېږي چې هلته ئې یو مزاری کاکه په منګي ویشتلی او وژلی وو؛ ځکه ئې نوم منګي لالو سو.

میر شو دوست ماد (دوست محمد) زموږ د ده خواجې د سیمې اوسېدونکی وو. په رنګ تور، په ونه نسبتاً ګردی چاغ سړی وو. اوږده او پلن برېتونه ئې د خولې دواړو خواوو ته تر شونډو را تېر او ځړېدلي وه. تل به ئې توره د خاصې لویه لنګوټه تړله. جامې ئې شنې یا نصواري وې؛ ما په سپینو یا روښانه رنګ جامو کې نه دئ لیدلی. شمله به ئې، د نورو پایلوچانو په ډول، ډېره اوږده وه. تل به لڅې پښې او یوازې ګرځېدی. ما ئې له هیڅا سره خبرې نه دي اورېدلي. سهار به په ده خواجه کې د ښار خواته روان وو، خو څوک نه پوهېدل چې میرشو چیرې ځي. ماښام، او کله تیاره ماښام، به د ښار له خوا بیرته د کور خوا ته روان وو او بیا هم څوک نه پوهېدل چې میرشو له کومه راغی. په دوبي او ژمي لوڅې پښې ګرځېدی او په زړه پوري دا وه چې خپلې چوټې او یا بوټونه به ئې په پټو کې پیچلي شا ته اړولي وه. هغه د کندهار یو پېژندل سوی پایلوچ وو. د هغه په باره کې ټولو دا ویل چې په لښته ډیر کلک سړی دئ. خو نور مې نه د سپین ږیري او نه ځوان څخه د هغه د کوم ښه صفت په باره کې څه اورېدلي دي. البته ټول هغه منفي صفتونه ئې درلودل چې د کندهار عادي خلکو ته د منلو وړ نه وه.

د کندهار ښار د کابل دروازې د پولیسو برج یا ماموریت ته مخامخ د غفار پالوده پز یا فیریني والا پر دوکان باندې، د انسانانو شهین (پیرو) سورسترګی عبدالرحمن، د هغه ورور غل احمد جان، چې د کندهار امنیه قوماندان بهاءالدین خان، د ښار څخه دباندې په هدیرو کې، په مخامخ ډزو کې وویشت او مړ ئې کړ، د پیرو ورو محمداکبر، شپږ ګوتی باقي او څو تنه نور پایلوچان کښېناستل. په دوی ټولو کې د انسانانو شهین مهم وو او خلکو سترګه ورڅخه کوله. میانه قده، خو ډېر چاغ سور سړی وو. وړې خړې سترګي ئې وې او د چاغوالي له لاسه ئې په ډېره ځواني کې ججوری درلود. تور پلن برېتونه ئې، چې سپین ویښته په ګډ سوي وه، کله کله په خوله کې پراته وه. د میرشو په څیر ترینګلی نه وو؛ ډېرې زیاتې خبرې ئې کولې او زیاتره وخت به ئې خندل. تل به ئې پاکې او رنګه جامې اغوستلې او همېشه به ئې نوې سپیشل لونګۍ تړلې. داسې ښکارېدله چې کار ئې جوړ دئ، او ځکه ئې نو تر نورو زیات قدر هم کېدی. پیرو د پایلوچانو ټول منفي صفتونه درلودل؛ او د دې منفي صفتونو ترڅنګ ئې یو لا دا هم وو چې ډېر شیطان سړی وو. تل به ئې خپل رقیبان په نورو وهل او حتی وژل، او تر وسه وسه ئې کوښښ کاوه چې په خپله په جنګونو او غلاوو کې مستقیمه برخه وانه خلي او له هغو کسانو څخه چې د ده په کور کې به ئې ډوډۍ خوړله ګټه واخلي. د نن څخه پنځه پنځوس کاله مخکې ئې، چې زه به لس کلن یا نهه کلن ماشوم وم، شین عبدالکریم، چې د کابل دروازې د پولیسو ماموریت ته څرمه ئې یو غریبانه دوکان درلود، او ډېر غښتلی سړی وو،

د خپل ورور محمد اکبر په همکاري، د شپې په تیاره کې له ښار څخه دباندې، په توپنچه وویشت او په ناځوانۍ کې ئې مړ کړ. په زړه پورې خبره دا ده چې پیرو او د هغه ورور ډېر لږ وخت د کندهار په محبس کې تېر کړ. له بند څخه له راخوشي کېدلو وروسته ټول خلک ورڅخه ډارېدل او ښايي له دغه وخته ئې د انسانانو د شهين نوم ګټلی وي.

د انسانانو شهين، کله کله د مازيګر پر وخت، د قلا شا ته د کاريز پر غاړه، چې شيرازه ئې بلله او شنې زراعتي ځمکې تر لاندې وې، د خپلو همزولو او ځينو ځوانو پايلوچانو او جنګي ځوانانو سره کښېنستی؛ او معمولاً به ئې لاروي آزارول. په دې ځوانانو کې يو د حاجي عين الدين تاجر ورور نصرالدين وو، چې تازه ئې له کابل دروازې څخه د نورزو تر شاه برج پورې، په نسبتاً پراخه سيمه کې نوم ايستلی وو، او پيرو ئې له آينده پرمختګ څخه ببرېدی. د کابل دروازې چوک ته نژدې د نورمحمد په نوم يوه ښايسته جګ نري ځوان، چې زما ئې تر اوسه ښايسته توره ږيره، جګه پزه او توري سترګي په ياد دي، د عطارۍ دوکان کاوه. پيرو له دغه ځوان سره د کوم علت له مخې سخت مخالفت درلود، او هغه هم د پيرو له ببرې مسلح ګرځېدی. پيرو نصرالدين تحريک کړ او له نورمحمد څخه ئې، چې يو بې آزاره ځوان وو، توپنچه واخيستله. بل ځل ئې بيا نصرالدين تحريک کړ او دا ځل نورمحمد مجبور سو چې له وسلې څخه کار واخلي. ده ښايي غوښتل چې نصرالدين وډاروي خو نصرالدين ووژل سو. د نصرالدن ورور عين الدين د کندهار په محبس کې نورمحمد قصاص کړ او په دې توګه د انسانانو شهين له دوو رقيبانو څخه، په يوه ځل، بېغمه سو.

د کندهار د پايلوچانو په باب نوري کيسې د يوه مضمون تر حوصلې وتلی کار دئ. خو په عمومي صورت هغوی چرسيان، جنګيان، غله او آزاريان وه. ما د هغوی په ژوند کې د کندهار له هيڅ اوسېدونکي څخه د هغوی د سپېڅلتيا، سخاوت او يا له مظلومانو سره د هغوی د مرستې او لاسنيوي په باره کې ډېر لږ څه اورېدلي دي؛ او که چيري کوم پايلوچ په کوم وخت کې له کوم مظلوم سره مرسته کړې وي او يا په سل ګونو پايلوچانو کې کوم يو نيم ښه سړی پيدا سوی وي دا پر ټولو پايلوچانو باندې عام دلالت نه کوي.

يوه خبره مو بايد په ياد وي چې پايلوچانو هيڅ وخت ځانونه پايلوچ يا لوچک نه بلل؛ ځکه چې دغه ډول نوم د هيچا پر ځان نه لوربېږي او دوی ټول لڅي پښې نه ګرځېدل او د چا چې وس رسېدی هغوی ښې جامې اغوستلې. د پايلوچ او لوچک نوم د کندهار د ښار او اطرافو عادي، نورمال، سنګينو او په اصطلاح آبدارو خلکو هغوی ته د دې له پاره ورکړی وو چې دغه طايفه خلک له ځانونو څخه بيل کړي؛ ځکه چې هغوی ته هيچا په ښه سترګه نه کتل. ايوب احوالدار، ګامو ايوب او ګردی احوالدار د پايلوچانو لومړی نسل بللای سو. ما چې د خپل اختېي ساقي محمد اعظم څخه، چې په ځواني کې د مشهور ګردي امان الله ډېر نژدې ملګری وو، پوښتنې کړې دي، معلومات ئې تر ايوب احوالدار نه تېرېدل؛

یا ښایي د ده حافظې او معلوماتو همدومره مرسته ورسره کوله. ښنګ حبیب الله، فراري حسنو، احمد اخوندزاده او ... د پایلوچانو دوهم نسل دئ. ما د دوی په باره کي چنداني بدي کیسې نه دي اورېدلي؛ خو داسي کارونه ئې باید کړي وي چي د سرکار بندیخانې ئې کاټ کړي او وهل ډبول ئې لیدلي دي.

د فراري حسنو په باره کي مي ځیني ښې کیسې اورېدلي دي او ویل کېدل چي د شپې د ښار ځخه دباندي مځکو کي ګرځي او ډېر ځله ئې د غلو او بدماشانو ځخه خلک ژغورلي دي. دغه راز دوه احمد اخوند زاده لرو. یو هغه احمد اخوند زاده دئ چي زما په وړوکوالي یا ښایي زما تر زېږېدلو مخکي نیول سوی او غرغړه سوی وي. لاري او درې ئې نیولې او د فرهنګ عمید د تعریف پر اساس رښتوني عیار وو. دوهم احمد اخوندزاده، چي په سندره کي ستایل سوی دی، د مشهور عالم او خطیب عبدالخالق اخوندزاده زوی او د مشهور عالم، خطیب او شاعر ملا عبدالباقي کاکړ، چي د کندهار له افتخاراتو ځخه دئ او د تهذیب الواجبات لتخریب العادات، مغتنم کتاب، مؤلف دئ لمسی دئ. د احمد اخوندزاده د پلار او زما د پلار د تجارتخانو تر منځ درې دوکانه فاصله وه. احمد اخوندزاده به زیاتره وخت د پلار سره په دوکان کي ناست وو، غټ، غنم رنګه ښایسته سړی وو. نري نري برېتونه ئې وه، ږیره ئې ګڼه نه وه او ډېر زیات لاس ئې ورسره ګرځاوه؛ وړې خړې سترګي ئې وې. بې اندازې پراخ سپین کالي ئې اغوستل. د سپیني خاصې لنګوټه ئې په داسي ډول تړل چي نه د ښار عادي خلکو ته ورته وه او نه د پایلوچانو رقم وو بلکي د ده خپل خاص غوره کړی طرز وو. تل به ئې دوبیلۍ موچڼه په پښو کوله. که ځه هم چي ما ئې د جنګونو، غلاوو یا نورو بدو کارونو په باب ځه نه دي اوریدلي خو ناسته ولاړه ئې زیاتره د ښار له پایلوچانو او بدو خلکو سره وه ځکه ئې نوم په سندرو کي راغلی دئ.

یوه خبره چي زه ئې د پایلوچانو په باره کي د خپلې ادعا د اثبات له پاره کوم او پر دې خبري ټینګار کوم چي هغوی د کندهار په تاریخ کي داسي پدیده نه وه چي د هغه ښار او شاوخوا په پخوانیو یا وروستینو شرایطو کي ئې مثبته اغیزه کړې وي هغه دا ده چي په نونسمه پېړۍ کي ډېرو پوهو انګریزانو د افغانستان په باب ډېر زیات کتابونه ولیکل او ډېر ژور تحقیقات ئې، چي تر اوسه پوري ګټه ورځخه اُځیستله کېږي وړاندي کړل. الفونستن، راورټي، ډاکټر بیلیو، چارلزمیسن، موهن لال، الیکزانډر برنس، فیریه، توربرن، سرجان کې، جي پي ټیټ او نورو زیاتو څېړونکو او صاحب منصبانو ډېري ژوري لیکني وکړې. که پایلوچانو د یوې موثري اجتماعي پدیدې یا حرکت په توګه یا تر دوی مخکي او یا د دوی په زمانه کي وجود درلودلای نو د دې سترګه ورو لیکوالانو ځخه پټ نه پاتېدل او په یوه نه یو ډول ئې یادونه کوله؛ خو موږ ئې په یوه کتاب کي نوم قدر هم نه دئ لیدلی.

د بلي خوا په ۱۹۹۲ کال کي، په افغانستان کي د کمونیستانو د حکومت د

سقوط سره سم، د کندهار د چارو واګي پایلوچانو ته په لاس ورغلې. خر، د خاله زوی، آس ګلو، ډانګ ماسدیک، کمیس کریم او ... قدرت ته ورسېدل. البته دا هغه پخواني پایلوچان نه وه چې د پولیسو له ډاره به د ښار څخه د باندې پټ ګرځیدل، بلکه اوس ئې هم قانوني قدرت په لاس کې وو او هم ئې د مقدس جهاد لایسنس درلود. دوی هغه مجاهدین وه چې عوامو ئې، پوره څوارلس کاله، د روسانو او کمونیستانو د کفري رژیم څخه د خلاصون له پاره، د بري غوښتنه کوله، او هم ئې په کورونو او هم په جوماتونو کې د دعا لاسونه ورته پورته کړي وه. د کندهار د خلکو دعاوې قبولې سوې وې؛ نور به دوی څه ویلي وای. پایلوچان بیخي په بدل لباس راغلي او مسلط سوي وه. توري خیرني چتلي څوني، چې پر اوږو به ئې پرتې وې. خیرني جامې، چې په میاشتو به ئې مینځلي نه وې، او له سهاره تر ماښامه به د چرسو او شرابو په نشو کې ډوب وه، په ښار ورننوتل. د هغوی د ناتار او ناورین شپې ورځې، چې کندهار نه په ژوند کې لیدلي وې او نه ئې ښایي بیا ووینې، د ټولو خلکو په یاد دي. د پایلوچانو په پاچهي کې نه د چا سر، نه ناموس او نه مال خوندي وو. له دوی څخه مخکې پایلوچانو نسل، چې محمود نظري ئې په ډېر افتخار د وحشت او جهالت خیالي کیسې لیکلي او اسدالله زړه سواند ئې ټول مضمون په خپله مقاله کې را نقل کړی دئ، تر دوی بهتر نه وه او له هغوی څخه مخکې پایلوچ نسل او نسلونه ټول د وحشت او جهالت نمایندګي کوي. د هغوی هیڅ کردار، په

افتخار څه چې، په یادولو نه ارزي. او د کندهار خلک باید د طالبانو دا خدمت هېر نه کړي چې د تل له پاره ئې د افتخاراتو هغه ډک ښار ته د دې بلا څخه نجات ورکړ؛ اوس په کندهار کې کړې بګړې، او کاږه تګونه نه لیده کېږي.

که څه هم چې زه د ملي افتخاراتو په برخه کې د ښار او سیمې د نامه له یادولو سره مخالف یم او د هر ښار او سیمې افتخار د ټول افغانستان افتخار بولم؛ خو څرنګه چې د پایلوچانو په مسئله کې په مشخصه توګه د کندهار موضوع مطرح کېږي نو باید ووایم چې کندهار د افتخاراتو ښار دئ. د جاهلو پایلوچانو پر ځای، چې زه خوشاله یم نور په کندهار کې نسته، باید په میرویس نیکه، میوند، پاني پت، احمد شاه بابا، شمس الدین کاکړ، میرزا حنان بارکزي، مهردل خان مشرقي، حبیبي صاحب، کاکا سیداحمد، حبو اخوندزاده، عبدالواسع اخوندزاده، محمدګل نوري، ویښو زلمیانو او اوسني ژوندي فرهنګ او ښایستو زلمیانو او پیغلانو فخر وکړو.

عیاران: هغه څوک چې ډېر ګرځي راګرځي، هغه څوک چې بېکاره وي او چټي ګرځي راګرځي، چالاک، چټک او زړه ور سړی. په دوهمه هجري پېړۍ کې عیار هغه چا ته ویل کېدی چې د کاروانونو لارې به ئې وهلې. ځینې عیاران ډېر زړه ور او د ځوانمردانو اخلاق ئې درلودل او په ژوند کې ئې خاص اصول درلودل او کله کله به ئې د پردیو حکمرانانو پر ضد ښورښونه کول. یعقوب بن لیث صفار هم د عیارانو له ډلې

ځخه وو او د عیارانو په مرسته ئې د صفاریانو سلسله منځته راوړه (فرهنګ عمید).

پخوانیو مؤرخینو تقریباً ټول ښه انساني صفتونه عیارانو ته منسوب کړي دي. عیار باید زړه ور، مېړه او په هر کار کي صابر وي. پر وعده ټینګ وي، باناموسه او په زړه پاک وي. د خپلي ګټي له پاره هیڅا ته تاوان و نه رسوي. بندیان و نه ځوروي او له بندیانو او بیچاره ګانو سره مرسته وکړي. بدان پرې نه ږدي چي نیکانو ته تاوان ورسوي. رشتیا واوري او رشتیا ووایي. نمک حرامي و نه کړي، هر عمل لومړی پر خپل ځان قیاس کړي، او د نېکۍ په مقابل کي بد و نه کړي، او د بل ښځو ته په بد نظر و نه ګوري (قابوس نامه ص ۲۴۷).

د عیارانو نوم ځکه یادوو چي زموږ مؤرخینو د کابل کاکه او د کندهار پایلوچ ته د یعقوب بن لیث او صفاریانو په بحث کي اشاره کړې ده، چي د عیارانو د سلسلې د قدرت لومړنی او وروستنی ښکارندوی دئ. مرحوم غبار خو دونه احساساتي کېږي چي عیاران نه یوازي د پردیو یرغلګرو په مقابل کي د مبارزې مخکښان بولي بلکي زیاتوي چي هغوی د ملاکانو د زور او ستم پر ضد مبارزه کوله. البته کله چي یعقوب لیث او عمرو لیث قدرت ته ورسېدل له نورو ټولواکانو او مستبدینو سره ئې ډېر لږ توپیر درلود. هغوی خپل ټول وخت په فتوحاتو، لښکرکښیو او د خزانو په جمع کولو تېر کړ، او نور ئې تقریباً هیڅ و نه کړل. په تواریخو کي هم د دې دوو ورونو د اجراآتو په باره کي یا ډېر لږ معلومات راغلي او یا د نشت په اندازه معلومات لرو. ځرنګه چي د دوی په

دربارونو کي تاریخ نه دئ لیکل سوی نو هغه پخواني تاریخي متون چي د یعقوب بن اللیث د لومړني ژوند او قدرت ته د رسېدلو په باره کي معلومات راکوي دومره سره مخالف او متناقض دي چي سړی مجبور دئ د ټولو تاریخي متونو ځخه ځو ځو کرښي راواخلي، سره پیوند ئې کړي او یو متن ورځخه جوړ کړي. په تاریخ سیستان کي، چي د صفاریانو په باب معلومات راکوي، او ډېرو زیاتو مؤرخینو استفاده ورځخه کړې ده، هم یوازي قدرت ته د هغوی د رسېدلو او فتوحاتو په باره کي خبري راغلي دي. تاریخ سیستان د یعقوب بن لیث او عمرو لیث پر خویونو او خصلتونو باندي د بحث په ترڅ کي د یعقوب بن لیث پر دینداری، سخا او عدالت باندي ږغېږي، او وایي چي یعقوب ډېر سخي وو؛ هیڅ وخت ئې تر پنځه سوه او زر دیناره کم بخشش نه کاوه او لس زره، شل زره، پنځوس زره، سل زره دینار او درم ئې خلکو ته ورکړي دي او عبداله بن زیاد ته ئې، چي له ده سره ملګری سو، پنځه سوه زره دیناره ورکړل(تاریخ سیستان: ۲۶۳). یعقوب بن لیث د یوه مسګر زوی وو. په لومړۍ ځواني کي ئې د لارو په نیولو او کاروانونو په وهلو ګوزاره کوله. د بخشش او عطا له پاره ئې دا په میلیونونو دیناره د نورو د خزانو د لوټلو او هغو لښکرکښیو او چور او تالان ځخه تر لاسه کړي وه چي ښایي په لس هاوو زره او حتی په سل هاوو زره بېګناه انسانان به پکښي قتل سوي وي. یعقوب د خپلي پاچهۍ ټول کلونه په جنګ، چور او تالان تېر کړل. په هر ځای کي چي به د خزانو او مالونو په باب

خبر ورته ورسېدی هغې خوا ته بې حرکت وکړ او مالونه بې په زور او ظلم ترلاسه کړل (تاریخ گزیده: ۳۷۲).

یعقوب بن لیث د خپل قدرت په وخت کې، د بل هر ورانکار او مستبد سلطان په څېر، هغه قلاوې چې لویو فاتحینو نه سوای فتح کولای، ورانې کړې، بیرته ئې آبادې کړې او زندانونه یې ورڅخه جوړ کړل (مسالک وممالک: ۱۰۵) یعقوب او عمرو د قدرت په وخت کې ډېر جابر او قهرجن وه او چندانې ئې دښمن ته بخښنه نه کول. دښمنان به ئې زیاتره د خپلو ټولو طرفدارانو سره وژل(هغه کتاب: ۱۲۵) حتی درهم بن نصر، چې یو وخت د سیستان حکمران وو، او یعقوب ته ئې سپه سالاري ورکړې وه؛ کله چې یعقوب د سیستان قدرت ورڅخه ونیوی او هغه عباسي دربار ته پناه یووړه او یو وخت بیرته د عباسي خلیفه د استازي په توګه د یعقوب دربار ته ورغی یعقوب هغه وواژه(هغه کتاب: ۱۹۸).

یعقوب بن لیث بن معدل د سیستان د قرنین د کلي اوسېدونکی وو او کله چې ښار ته راغی نو مسګري ئې شروع کړه، او د میاشتې په پنځه لس درهمه مزدور وو. څرنګه چې په دې لږ مزدوري ئې قناعت نه سو کولای نو عیار سو او غلا او لارو نیولو ته ئې مخه کړه (تاریخ ګردیزي: ۳۰۴). کرار کرار ئې دله ډېره غټه سوه او د بست د عیارانو مشر سو. وروسته د سیستان د حاکم صالح بن نصر کناني، چې تاریخ ګردیزي ئې نصر بن صالح لیکي، په خدمت کې شامل سو. هغه د خپلو لښکرو سپه سالاري ورکړه. لږ وروسته ئې صالح له قدرته لیري کړ. صالح وتښتېدی او د اوسني قندهار په شمالي سیمو کې د یعقوب د لښکرو لاسته ورغی. یعقوب هغه بندي کړ او په بند کې مړ سو. یعقوب بن لیث د سیستان مستقل حکمران سو او له دغه ځایه څخه ئې هري خوا ته فتوحات پیل کړل. د ده له ښې طالع، د اسلام د خلافت د مرکز بغداد په شمول، هري خواته واړه او لوی حکومتونه داسي کمزوري وه چې تر یعقوب له واړه قوت سره ئې هم مقاومت نه سو کولای. د یعقوب متې له هري فتح سره غښتلي کېدل او د امپراطورۍ لمن ئې ورځ په ورځ دونه پراخه سوه چې له خلیفه سره ئې ویره پیدا کړه.

یعقوب بن لیث د خپلي پاچهۍ په لومړیو دوولسو کالو کې له ټولو جنګونو څخه بریالی را ووت او بالاخره ئې په سر کې د اسلام د خلافت د مرکز بغداد د نیولو هوا پیدا سوه. د شېراز د نیولو څخه وروسته ئې تقریباً ټول فارس تر لاس لاندي سو خو د خلیفه المعتمد د ورور الموفق په مقابل کې ئې د حلوان په جنګ کې ماته وکړه او خوزستان ته وتښتېدی. دوه کاله وروسته ئې بیا د بغداد د نیولو عزم وکړ. کله چې خلیفه خپل استازی ور واستاوه او ورته وې ویل چې په تېر ځل کې زموږ قدرت درمعلوم سو نو باید چې توبه وکړې او زموږ له مخالفت څخه لاس واخلې او د خراسان په پاچهۍ قانع سې نو یعقوب په جواب کې ورته وویل چې زه د یوه نجار زوی یم؛ د خپل بازو او همت په زور مي ځان تر دغه ځایه را رسولی دئ او چې تر څو مي خلیفه را پرزولی نه وي آرام به و نه کړم. که مي دا مرام

تر سره سو خو واوا او که نه وي نو پياز او ډوډۍ او د نجارۍ کسب زما څخه څوک نه سي اخيستلای (تاريخ حبيب السير: ۳۴۷/۲).

يعقوب بن ليث په ۸۷۸ کال کي په جنديشاپور کي د قولنج د ناروغۍ له امله وفات سو او په خزانه کې پنځوس ميليونه درمه او اته سوه زره ديناره نغد ورڅخه پاته سول (مروج الذهب: ۶۰۱/۲). د هغه ورور عمرو بن ليث، د خليفه المعتمد د زړه د ترلاسه کولو له پاره، هغه ته، د احمد بن عبدالعزيز بن ابي دُلف له لوټلو خزانو څخه ډېر زيات سوغاتونه واستول. په دې کي څه باندي درې سوه زره ديناره، پنځوس منه مشک، پنځوس منه عنبر، دوه سوه منه عود، درې سوه نقش و نګار لباسونه، د سرو زرو او سپينو زرو لوښي، څاروي او غلامان شامل وه (روضته الصفا: ۵۴۰). يعقوب بن ليث د خپل يوه رقيب حسن بن زيد علوي سره د جنګ له پاره د ډېرو زياتو پوځيانو سره روان سو، خو مخکي له هغه چي د حسن بن زيد سره مخامخ سي، د سختو بارانونو د اورېدلو له امله ئې، چي څلوېښت ورځي او شپې ئې دوام وکړ، څلوېښت زره عسکر تلف سول او بيرته ستنېدلو ته مجبور سو (روضته الصفا: ۵۳۸).

موږ ګورو چي يعقوب بن ليث او عمرو بن ليث د څه کم څلوېښتو کلونو قدرت په زمانه کي د جنګونو، ښارونو لاندي کولو او خزانو د لوټلو پرته بل هيڅ کار نه دئ کړی؛ او د قدرت په زمانه کي يوه شيبه هم، د مرحوم غبار د ادعا په خلاف، د ملاکانو څخه د غريبانو د حقوقو د اخيستلو غم ورسره پيدا سوی نه دئ. د هغوی جنګونو، د نورو لويو فاتحينو په څېر د قدرت د قلمرو د پراخولو، خزانو د لوټلو او غلامانو او بنديانو د زياتولو بل هدف نه درلود. هغوی ټول جنګونه د اسلام په قلمرو کي وکړل؛ دواړو خواوو ته مسلمانان، او زياتره ښوزلي او غريب خلک وژل کېدل. ګواکي عيار زموږ د مؤرخينو او قابوس نامې د ليکوال د ادعا په خلاف ملايکه نه ده. منتهی د عيار ژوند بايد پر دريو مرحلو وويشل سي: عياران، چي معمولاً جسماً قوي خلک وي، په لومړۍ سر کي عادي غله وي. کله چي د وخت حکومتونه د بې ادارګۍ او کمزورۍ له امله نه په ښارونو کي د خلکو د کورونو او مالونو امنيت تامين کړای سي او نه په لويو لارو کي د تجارتي کاروانونو او خزانو د ساتلو غم وخوړلای سي نو د غلو ډلي منځته راسي او کله کله د غلو کوچنۍ ډلي يو مشر وټاکي او يوه سيمه داسي تر لاس لاندي کړي چي کمزوری حکومت ئې ورڅخه اخيستلای نه سي. کله چي د غلو د ډلي مشر د حکومت دغه ډول کمزوري ووينې نو د لوی مشرتابه او حتی د پاچهۍ هوا ور ولاړه سي. په دغه وخت کي نو د هغه د ژوند دوهمه مرحله پيل کېږي. هغه ځانته د يوه عادي غله په سترګه نه ګوري، بلکي د يوه راتلونکي مشر او پاچا په حيث په خپل سلوک کي تغير راولي. کله کله له نيستمنو او مظلومانو سره مرستي کوي، خلکو ته پيسې ورکوي، له ظالم څخه د مظلوم حق اخلي او ضمناً په نژدو او ليري ځايونو کي د ځان او ملګرو د ښېګڼو په باب تبليغات او پروپاګند کوي. کله کله د غلو د ډلي له دغه

مشر سره، چي په دغه وخت کي قومي مشر ورځخه جوړ سوی وي، بخت ياري وکړي او د وخت حکومت د امنيت د خوندي کولو له پاره پوځي مشرتوب ورکړي. يعقوب بن ليث ته صالح بن نصر سپه سالاري ورکړه او هغه بالاخره قدرتِ ورځخه ونيوی. نادرشاه افشار ته، چي د يعقوب بن ليث په ځير، په لومړي سر کي، يو غل وو، طهماسپ صفوي د پوځ مشرتوب ورکړ او بالاخره ئې طهماسپ وواژه او پ خپله پاچا سو. حبيب الله کلکاني هم، چي خليل الله خليلي ئې د خراسان عيار بولي، په لومړي سر کي يو عادي غل وو. ملک محسن د خپلو رقيبانو او دښمنانو د وهلو او ډارولو له پاره کار ورځخه اخيست. وروسته ئې ولیدل چي مرکزي حکومت نه لاري ساتلای سي او نه حتی د خپلو اولسواليو او حکومتي ادارو او مرکزونو ساتنه کولای سي نو ځکه د پاچهۍ هوا ور ولاړه سوه. طبيعي خبره ده چي په دغه مرحله کي به ئې له ډيرو خلکو سره ښه کړي وي او خلکو به هم د يوه ځوانمرد په سترگه ورته کتلي وي.

خو دا دري واړه مشران چي قدرت ته رسېدلي دي يوه شيبه يې د بېوزلانو او مظلومانو په باره کي فکر نه دئ کړی او هر څه يې د ځان له پاره غوښتي دي. يعقوب بن ليث او نادرشاه افشار ته د لويو امپراطوريو د جوړولو او فتوحاتو زمينه برابره سوه او چي څه ئې کولای سوای هغه ئې وکړل. خو حبيب الله کلکانی په يوه کمزوري هيواد کي قدرت ته رسېدلی وو او ايله نهه مياشتي ئې په کابل کي لړزانه پاچهي وکړه. د همدغه لنډ او لړزانه قدرت په زمانه کي ئې هغه جنايتونه وکړل چي د افغانستان خلکو ئې په خپل تاريخ کي ساری نه وو ليدلی. تر څو چي د مجاهدينو د قدرت په زمانه کي د حبيب الله کلکاني جنايتونه په لس چنده زور او شدت تکرار سول. د يعقوب بن ليث او عمرو بن ليث د اجراآتو په باره کي، په تاريخي کتابونو کي، ډېر زيات معلومات نسته خو د نادرشاه افشار د لېوني استبداد او قتل عامونو په باره کي په ډېرو زياتو تاريخي کتابونو کي موثق تفصيلات راغلي دي. د حبيب الله کلکاني د قدرت په نهه مياشتنۍ دوره کي د هغه ورور حميدالله، د کابل والي ملک محسن او صدراعظم سيد حسين او د هغه د نورو لويو قوماندانانو د جناياتو په باره کي د تفصيلاتو تکرار ځکه بيځايه دئ چي د يوه مضمون تر حوصلې وتلی کار دئ.

دري واړه غريب او نېستمن وه. دري واړه جسماً قوي خلک وه؛ دري واړه په لومړي سر کي غله او په پای کي قدرت ته ورسېدل. دري واړه بيسواده وه؛ او يعقوب بن ليث خو د بيسوادۍ تر څنگ دونه بېخبره وو چي عثمان بن عفان ئې نه پيژاند او په دې خبر نه وو چي شيعه گان ولي هغه ته بد وايي (روضة الصفا: ۵۴۰) دغه ډول کسانو که په ژوند کي څه ښه کړي دي نو هغه ئې د غلا او داړه ماريو په دوهمه مرحله کي کړي دي. البته يوه کيسه به رشتيا وي او شل به وروسته ايجاد سوي او يا په هغه وخت کي ورپوري تړلی سوي وي. د يعقوب بن ليث او عمرو بن ليث په دربارونو او د هغوی د سلطنت په نورو مرکزونو کي تاريخونه او کتابونه نه دي ليکل سوي او د

هغوی د ژوند په باب زیاتره اطلاعات افسانوي شکل لري. خو له نېکه مرغه چې د نادر شاه افشار او حبیب الله کلکاني په باب، د سالم قضاوت له پاره، ډېر موثق تفصیلات موجود دي. د یعقوب بن لیث او د هغه د زمانې د عیارانو په باب لیکنې او قضاوتونه د هغه له زمانې څخه پېړۍ پېړۍ وروسته سوي دي او ځکه نو زیاتره لیکنې او کیسې افسانوي رنګ لري. زموږ د وروسته مؤرخینو قضاوتونه پر دغو افسانو ولاړ دي. ځکه نو عیارانو ته د ملایکو په سترګه ګوري او زموږ مورخ مرحوم غبار ئې حتی د ملاکانو او فیوډالانو په مقابل کې را ولاړ سوی تحریک بولي او د مظلومانو او بېوزلانو د مدافعیو په سترګه ورته ګوري. خو له نېکه مرغه چې د نادرشاه افشار او حبیب الله کلکاني په باب، چې ځان ئې خادم دین رسول الله باله، دغه راز افسانې ځکه ځای نه سي نیولای چې مؤرخینو او لیکوالانو د هغوی ډول جنایتونه د سر په سترګو لیدلي دي هغه ئې لیکلي او وروسته چاپ سوي دي.

که زموږ د مؤرخینو قضاوتونه یوازي د عیارانو په باب وای نو چنداني پر وا به ئې نه کولای. د تاریخي اشخاصو، پېښو او تحریکونو په باره کي راز راز اطلاعات او نظرونه موجود دي. سړی نه سي کولای چې هر نظر جلا جلا رد کړي. خو کله چې هغوی هم عیارانو ته د ملایکو به سترګه وګوري او بیا هغه د ملایکو ډول صفتونه د کابل کاکه ګانو او د کندهار پایلوچانو ته، چې تقریباً هیڅ ښه صفت نه لري، ورکړي؛ او په راتلونکي کي زموږ د بل نسل یا نسلونو د ګمراهۍ سبب کېږي نو سړی یو څه لیکلو او جواب ویلو ته مجبور یږي.

مأخذونه:


۱. افغانستان در مسیر تاریخ، میرغلام محمد غبار (دولتي مطبعه، کابل افغانستان،۱۹۶۷ع).
۲. افغانستان بعد از اسلام، پوهاند عبدالحی حبیبي، بخش دوم جلد اول (طبع دوم، کابل ۱۳۵۷ شمسي).
۳. روضة الصفا، محمد بن خاوند شاه بلخي (تهذیب و تلخیص ډکټر عباس زریاب، چاپ دوم ۱۳۷۵ تهران).
۴. تاریخ حبیب السیر، خواند امیر (جلد دوم و چاپ چهارم ۱۳۸۰ تهران).
۵. قابوس نامه، عنصرالمعالي کیکاووس بن اسکندر بن قابوس بن وشمګیر بن زیار (تهران ۱۳۷۳).
۶. تاریخ ګزیده، حمدالله مستوفي (موسسه انتشارات امیر کبیرو تهران ۱۳۶۲).
۷. تاریخ سیستان، تالیف در حدود ۴۴۵-۷۲۵) چاپ دوم، تهران ۱۳۶۶).
۸. مروج الذهب و معادن الجوهر، علي بن حسین مسعودي (جلد دوم، تهران ۱۳۸۷).
۹. تاریخ ګردیزی، ابو سعید عبدالحی بن ضحاک ابن محمود ګردیزي (چاپ اول، ۱۳۶۳، تهران، چاپخانه ارمغان).
۱۰. مسالک و ممالک، ابواسحق ابراهیم اصطخري (چاپ اول، ۱۳۴۷، تهران شرکت انتشارات علمی و فرهنګی).
۱۱. فرهنګ عمید.


***



ډاکټر عبدالرزاق پالوال PH. D.

# جمشید پېژندنه



څه چي زه د جمشید په اړوند و دغي لیکني ته هڅولئ یم، هغه د جمشید ناپېژندنه ده. د جمشید په باره کښي لسونو پوهانو او مؤرخانو لیکني کړي دي چي زه به ئې لومړی دروراندي کم څو لوستونکي پوهېدلي وي چي دوی ئې څنګه پېژندنه کوي. دغه بېلابېل مؤرخان د پخوانیو او هم وروستنیو زمانو دي چي لوی استاد پوهاند حبيبي ئې څرګندوني غونډي کړي او د طبقات ناصري په لسم تعلیق کښي ئې وړاندي کړي دي.

بله منبع چي د جمشید په اړوند مفصل بیان لري هغه شاهنامه ده. دا چي د شاهنامې بیان له کم اخستیځ څخه اخستل سوئ دئ، ښوونه ئې سوې نه ده.

دریم اخستیځ چي د شاهنامې غوندي پر جمشید باندي څه مفصل بیان لري هغه د منهاج سراج جوزجاني طبقات ناصري دئ چي زه به ئې اړونده بیان درپښتو کم.

دغه وړاندنۍ یادوني مي د دې له پاره وکړې چي لوستونکي باید له لویه سره څخه و دې ته ځیر اوسي چي په دغه هر اخستیځ کښي څه ډنګه بیان سوي دي؟ آیا داغه ئې واقعیت دئ که به ئې لا اصالت بل څه ؤ. دا به په وروستو کښي سره وګورو.

په انګلیسي ژبه کښي یو وېل دئ چي وایي: "پر رغړنده ډبري باندي خاوري خځلي نه ورغونډېږي". خو د دغه په برعکس، یوه اجتماعي پېښه یا ثقافتي پېښاوله (پدیده) چي د پېړیو په اوږدو کښي ئې له یوې ټولني

ځخه و بلي ټولني ته، له يوې پوړۍ (نسله) ځخه و بلي پوړۍ (نسل) ته انتقال او خپرېښت موندلئ وي، خورا ډېري ښايېدوني او ناښايېدوني لکۍ او پنډکۍ به پوري موښلولي سوي وي. د دغسي واقعيت يوه نمونه او ځرګندوءنه هم دغه جمشيد دئ چي زء به ئې تر ممکنه انده پوري په برء او پساره سره دروړاندي کم. که په نورو دغسي پېښاولو پسي ګرځېدلاست، د موقع مساعدت ئې درځخه غواړم.

دا چي رغړنده اجتماعي پېښاوله د ډېرو لکيانو او پنډکيانو مرکز ګرځېداى سي، نو له هغې سره به ډېري غلط فهمۍ هم ملګري وي. دغه ځکه او هاله داسي پېښېداى سي چي د يوې ټولني ثقافتي پېښي بيان همزمانه په افقي توګه وړل سوئ وي، يا دا چي له يوې پېړۍ او پوړۍ ځخه و بلي او نورو ته په عمودي توګه يا د زمانې په اوږدو کښي، نسل پر نسل باندي انتقال سوې وي، ځکه ئې نو په پردي ثقافت او ذهنيت کښي پېښي خپل اصلي مفهوم بايللئ وي، او د بلي ټولني وګړو له خپله ذهنيته سره سم بل راز فهمولې وي. بله ټولنه چي د اصلي ټولني په استعاراتو، کناياتو او اداوو په مفهوم سمه نه پوهېږي، ځکه ئې نو له خپله فهمه سره سمه توجيه کوي. نو پايلامه ئې خود هم غلط فهمي وي.

د يادو کړو اخستيځونو بيان زء د قضاوت له پاره و لوستونکو ته ورپرېږدم، ځو دوى د وړاندنۍ لنډې مقدمې په رڼا کښي و موضوع ته په غور سره کتلي وي.

### جمشيد په ځينو پخوانيو آثارو کښي

لوى استاد پوهاند صاحب حبيبي د جمشيد په اړوند دغه پسې معلومات غونډ کړي او هغه ئې د طبقات ناصري د دوهم ټوک په لسم تعليق کښي په پسې توګه وړاندي کړي دي:

"نام همان شاه باستانی آریانی است، که در تاریخ باختر شهرت بسزای دارد" ... چي زء به ئې پښتو ترجمه درکم:

جمشيد د هغه پخواني شاه نوم دئ چي د باختر په تاريخ کښي ډېر شهرت لري هغه پخواني ترين اخستيځونه چي په هغيو کښي د "جم" نوم ياد سوئ دئ په رشتيا سره پخواني آرياني ديني کتابونه دي چي په اوستا کښي د ګاتونو په برخه کښي (يسنا ۳۲، پاړکى ۸) او د ونديداد په برخه کښي (۲ فرګرد) يمه Yima راغلئ دئ، او پلار ئې په (يسنا ۳۲ پاړکي ۸) کښي د ويوهونت Vivahwant په نامه بلل سوئ دئ. په اوستا کښي د "يمه" لغت د "ورپوري، او همزولي" په مانا دئ. په ريګويدا کښي هم د دغه نامه (ياما) يادوءنه سوې ده. د برهمنانو په مذهبي کتابونو کښي، دى د (يم) په نامه او خور ئې د (يمي) په نامه سره د آدم او حوا په شان دي.

خو د اوستا په ګاتها کښي "شيد" د دء د نامه برخه نه ده. ولي په نورو پاړکو کښي د خشت Xashaete په شکل سره د دء د نامه برخه ده، لکه "خورشيد" چي د درخشان په مانا سره دئ (ګاتها ۹۶ مخ، د پورداود ترجمه).

اسلامي مؤرخان هم د جمشيد د نامه په شرحه کښي تفصيلات لري. د دوى له ټل ځخه ابوالفدا داسي کښلي دي: "جم" د سپوږمۍ په مانا دئ، او "شيد" د شعاع مانا لري. ځکه نو "جمشيد" د (سپوږمۍ وړانګي) مانا لري (ابوالفدا – ۱۳۸ مخ، د طبري پلپانه). له اسلامي مؤرخانو ځخه نور ابن اثير، ابن مسکويه، او د مجمل [التواريخ] خاوند ټول د دغه شاه د ښېګڼو يادوءنه کوي. په مجمل

کښې ئې داسې پر کښلي دي: هغه ښېګڼې او روښنايي چې له دې ځخه خپرېدله، و هغې ته ئې جمشيد ويل، او "شيد"، (روښنايي) ده (مجمل ۲۵ مخ)، او بل ځای کارېږي چې "شيد" د (خور) [نمر] په مانا ده (مجمل ۴۱۷ مخ).

پس نو ښايي چې هغه اوستائي لغت "خشئيت" دي د زمانې په بهيد کښې "شيد" ګرځېدلئ وي. ځکه چې د اسلامي زمانې مؤرخانو کښلي دي چې پخوانی مانا ئې ثابته پاته سوې ده، خو د لغت ظاهري شکل نوې ښه اخستې ده لکه د پلار نوم چې ئې ترمخه درکړې سو په اوستا کښې "ويوهونت" راغلئ دئ چې په وروستو کښې –ويونګهوت، وجواتهان او ويوتګهان سوئ دئ څو بالآخره ئې عربي شکل ويونجهان ګرځېدلئ دئ.

البيروني د جمشيد نسب داسې کښلئ دئ: جمشيد د ويجهان زوی، د اوشهنګ نمسی، د افراوک کړوسی، د سيامک کوسی، د ميشي کودی ؤ (آثارالباقيه ۱۰۳). د تاريخ سيستان ليکوال د جمشيد پلار نونجهان بللئ دئ (تاريخ سيستان ۲ مخ). د مجمل مؤلف دی ويجهان ياد کړئ دئ (مجمل ۲۴ مخ)، مسعودي دی انوجهان بللئ دئ (مروج الذهب، لومړی ټوک ۱۳۸ مخ).

په هره توګه دغه بېلابېل نومونه د اوستائي اصلي نامه تحريفات دي چې د زمانې په تېرېدنه کښې او د بېلابېلو ژبو په مرور نه کښې چې په بېلابېلو ټولنو پوري ئې اړه لرله، د دوی له فهم او ژبنی ادايني سره ئې بېلابېل شکلونه اخستي دي (د پوهاند حبيبي لسم تعليق، د طبقات ناصري، دوهم ټوک ۱۳۴۳: ۳۱۱–۳۱۲).

(۱)

**جمشيد په شاهنامه کښې**

بدان را زبد دست کوته کنم
روان را سوی روشنی ره کنم

بفرکئی نرم کرد آهنا
چو خود وزره کرد و چو جوشنا
بدين اندرون سال پنجاه رنج
ببرد و از اين ساز بنهاد ګنج
زکتان و ابريشم و موی و قز
قصب کرد پرمايه ديبا و خز
چو شد بافته شستن و دوختن
ګرفتند ازو يکسر آموختن
زهرپيشه ور انجمن ګرد کرد
بدين اندرون سال پنجاه خورد
جدا کرد شان از ميان ګروه
پرستنده را جايګه کرد کوه
صفی بر دګر دست بنشاندند
همی نام نيساريان خواندند
کجا شير مردان جنګ آورند
فروزندهٔ لشکر و کشورند
کزايشان بود تخت شاهی بپای
وزايشان بود نام مردی بجای
نسودی سديګر ګره را شناس
کجا نيست بر کس از ايشان سپاس
بکارند و ورزند و خود بدروند
بګاه خورش سرزنش نشنوند
زفرمان سر آزاده خود ژنده پوش
زآواز بيغاره آسوده ګوش
بر آسوده از داور و ګفتګوی
تن آزاد و آباد ګيتی بدوی
چه ګفت آن سخنګوی آزاده مرد
که آزاده را کاهلی بنده کرد

چهارم که خوانند اهنو خوشی
همان دست ورزان بر سرکشی

کجا کارشان همگنان پیشه بود
روانشان همیشه پراندیشه بود
بدین اندرون سال پنجاه نیز
بخورد و ببخشید بسیار چیز
از این هر یکی را یکی پایگاه
سزاوار بگزید و بنمود راه
که تا هر کس اندازهٔ خویش را
به بیند بداند کم و بیش را
از آن پس که اینها شد آراسته
شهنشاه با دانش و خواسته
بفرمود دیوان ناپاک را
بآب اندر آمیختن خاک را
هر آنچه از گل آمد چو بشناختند
سبک خشت را کالبد ساختند
بسنگ و بگچ دیو دیوار کرد
نخست از برش هندسی کار کرد
چو گرمابه و کاخهای بلند
چو ایوان که باشد پناه از گزند
زخارا گهر جست یکروزگار
همی کرد زو روشنی خواستار
بچنگ آمدش چند گونه گهر
چو یاقوت و بیجاده و سیم و زر
زخارا بافسون برون آورید
شد آراسته بندها را کلید
دگر بویهای خوش آورد باز
که دارند مردم ببویش نیاز
چوبان و چو کافور و چون مشک ناب
چو عود و چو عنبر چو روشن گلاب
پزشکی و درمان هر دردمند
در تندرستی و راه گزند
همه رازها نیز کرد آشکار
جهان را نیامد چنو خواستار

گذر کرد از آن پس بکشتی بر آب
زکشور بکشور بر آمد شتاب

نخست آلت جنگ را دست برد
در نام جستن بگردان سپرد
چو خفتان و چون درع و بر گستوان
همه کرد پیدا بروشنروان
دگر پنجه اندیشهٔ جامه کرد
که پوشند هنگام جنگ و نبرد
بیاموختشان رشتن و تافتن
بتار اندرون پود را بافتن
چو این کرده شد ساز دیگر نهاد
زمانه بدو شاد و او نیز شاد
گروهی که کاتوزیان خوانیش
برسم پرستندگان دانیش
بدان تا پرستش بود کارشان
نوان پیش روشن جهاندارشان
چنین سال پنجه بورزید نیز
ندید از هنر بر خرد بسته چیز
چو آن کارهای وی آمد بجای
زجای مهی برتر آورد پای
که چون خواستی دیو برداشتی
زهامون بگردون برافراشتی
جهان انجمن شد بر تخت اوی
از آن بر شده فرهٔ بخت اوی
سر سال نو هرمز فرودین
بر آسوده از رنج تن دل زکین
بزرگان بشادی بیاراستند
می ورود و رامشگران خواستند
چنین سال سیصد همیرفت کار
ندیدند مرگ اندر آن روزگار
زرنج و زبدشان نبود آگهی
میان بسته دیوان بسان رهی
نشستهٔ بر آن تخت جمشید کی
بچنگ اندرون خسروی جام می

بر افراز تخت سپهبد زده
سراسر زمرغان همه صف زده

همان کردنیها چو آمد پدید
بگیتی جز از خویشتن را ندید
بفرکیانی یکی تخت ساخت
چه مایه بدو گوهر اندر نساخت
چو خورشید تابان میان هوا
نشسته بر او شاه فرمانروا
بجمشید بر گوهر افشاندند
مرآن روز را روز نو خواندند
بنو روز نو شاه گیتی فروز
بر آن تخت بنشست فیروز روز
چنین جشن فرخ از آنروزگار
بمانده از آن خسروان یادگار
نیارست کس کرد بیکارئی
نبد دردمندی و بیمارئی
یکی تخت پرمایه کرده بپای
بر او بر نشسته جهان کدخدای
مر آن تخت را دیو برداشته
زهامون بابر اندر افراشته
بفرمانش مردم نهاده دو گوش
زرامش جهان پر زآوای نوش
چنین تا بر آمد براین سالیان
همی تافت از شاه فرکیان

(۲)

**برگشتن جمشید از فرمان خدا و برگشتن روزگار از او**

جهان بد بآرام از آن شاد کام
زیزدان بدو نو بنو بد پیام
جهان سر بسر گشته او را رهی
نشسته جهاندار با فرهی
منی کرد آنشاه یزدان شناس
زیزدان به پیچید و شد ناسپاس

چنین گفت با سالخورده مهان
که جز خویشتن را ندانم جهان
جهان را بخوبی من آراستم
زروی زمین رنج من کاستم
بزرگی و دیهیم و شاهی مراست
که گوید که جز من کسی پادشاست
جز از من که برداشت مرگ از کسی
و گر بر زمین شاه باشد بسی
گرایدونکه دانید من کردم این
مرا خواند باید جهان آفرین
چو این گفته شد فریزدان از اوی
گسست و جهان شد پر از گفتگوی
منی چون به پیوست با کردگار
شکست اندر آورد و بر گشت کار
بیزدان هر آنکس که شد ناسپاس
بدلش اندر آید زهرسو هراس
ازو پاک یزدان چو شد خشمناک
بدانست و شد شاه با ترس و باک
همی راند جمشید خون در کنار
همی کرد پوزش بر کردگار
چو چندی بر آمد برین روزگار
ندیدند جز خوبی از شهریار
یکایک بتخت مهی بنگرید
بگیتی جز از خویشتن کس ندید
گرانمایگانرا زلشکر بخواند
چه مایه سخن پیش ایشان براند
هنر در جهان از من آمد پدید
چو من تاجور تخت شاهی که دید
خور و خواب و آرامتان از من است
همان پوشش و کامتان از من است
بدارو و درمان جهان گشت راست
که پیماری و مرگ کس رانکاست
شمارا ز من هوش و جان در تن است
بمن نگرود هر که اهریمن است

همه موبدان سرفکنده نگون
چرا کس نیارست گفتن نه چون

سه و بیست سال از دربارگاه
پراکنده گشتند یکسر سپاه
چه گفت آن سخنگوی باترس و هوش
چو خسرو شدی بندگی را بگوش
بجمشید برتیره گون گشت روز
همی کاست زو فرگیتی فروز
چو آزرده شد پاک یزدان از وی
بدان درد درمان ندیدند روی
همی کاست زو فره ایزدی
برآورده بر وی شکوه بدی

(۳)

### تباه شدن روزگار جمشید بدست ضحاک

پدید آمد از هر سوئی خسروی
یکی نامجوئی زهرپهلوی
یکایک از ایران برآمد سپاه
سوی تازیان برگرفتند راه
سواران ایران همه شاه جوی
نهادند یکسر بضحاک روی
کی اژدهافش بیامد چو باد
بایران زمین تاج بر سر نهاد
سوی تخت جمشید بنهاد روی
چو انگشتری کرد گیتی بروی
برفت و بدو داد تخت و کلاه
بزرگی و دیهیم و گنج و سپاه
چو صد سالش اندر جهان کس ندید
زچشم همه مردمان ناپدید
چو ضحاکش آورد ناگه بچنگ
یکایک ندادش زمانی درنگ
نهان بود چند از دم اژدها
بفرجام هم زد نیامد رها

ازاین پیش بر تخت شاهی که بود
از آن رنج بردن چه آمدش سود
چه باید همی زندگانی دراز
که گیتی نخواهد گشادنت راز
یکایک چو گوئی که گسترد مهر
نخواهد نمودن ببد نیز چهر
سپه کرده و چنگ را ساخته
دل از مهر جمشید پرداخته
شنیدند کانجا یکی مهتر است
پر از هول آن اژدها پیکر است
بشاهی بر او آفرین خواندند
و را شاه ایران زمین خواندند
از ایران و از تازیان لشکری
گزین کرد گردان هر کشوری
چو جمشید را بخت شد کند رو
به تنگ آوریدش جهاندار نو
نهان گشت و گیتی برو شد سیاه
سپردش بضحاک تخت و کلاه
صدم سال روزی بدریای چین
پدید آمد آنشاه ناپاک دین
باره مر او را بدو نیم کرد
جهانرا از او پاک و بی بیم کرد
شد آن تخت شاهی و آن دستگاه
ربودش زمانه چو بیجاده گاه
گذشته بر او سالیان هفتصد
پدید آوریدش بسی نیک و بد
همی پروراندت با شهد و نوش
جز آواز نرمت نیامد بگوش
همه شاد باشی و شادی بدوی
همه راز دل برگشائی بدوی
یکی نغز بازی برون آورد
بدلت اندر از درد خون آورد

**جمشید د منهاج سراج له لیدنوني څخه:**

د جمشید بادشاه بیان منهاج سراج جوزجاني په خپل کتاب طبقات ناصري کښي داسي کښلئ دئ:

جمشید د ایتکمد زوی او د هوشنګ نمسی ؤ. جمشید د حرمه زوی او د نکهان نمسی ؤ. دی خورا ښایسته ؤ. له طبري تاریخ څخه د مقدسي په روایت سره دی د طهمورث ورور ؤ. دهٔ د اوو اقلیمونو هیواد ونیوئ. دی د مهتر ادریس علیه السلام ولیعهد ؤ. جهان ئې سمسور او ودان کړ. د بادشاهۍ او جنګ سامانونه ئې جوړ کړل. د څرګندوني په توګه ئې پرده پوښه بورجل، ډول او سارنګ، جنډۍ او ډمامه ئې تاسیس کړل، له اوسپنې څخه ئې وسلې جوړې کړې، داسې لکه: توره، زغره، سپر، د آس زین، ملونه او د لښکر اوډنه ئې سره سمه کړه. وریښم، سوڼ، او پمبه ئې وور ښځل او وغښتل، او کالیګان ئې څنې واودل. د دهٔ په فرمان سره و دوورونو ته د کیلیو کولپان ورواچول سول. کاسه او سترخان ئې باب کړل. خلګ ئې پر څلورو ټلونو باندې څله وو ښځل: یو ټل ئې د جنګ لښکر کړ، بل ټل ئې کرهڼوال کړل، دریم ټل ئې د تجارت له پاره پلورونکي او پېرودونکي کړل، او څلرم ټل ئې د علم، شریعت، او دین ساتنې له پاره وګومارل. پیلان ئې تابع کړل، او د باروړنې له پاره ئې ګاډۍ جوړه کړه. د دهٔ په دوران کښې د ستورو پېژندنه (د نجوم علم) ډېر باب سوئ ؤ، چې افسون رواج موندلئ ؤ. دهٔ پېرانان تابع او مسخر کړي ول. د دهٔ په فرمان سره دېبانو له غرونو څخه سیماب ورواېستل. ښیښه، مرغلرې، پخې خښتې، ګچ، اهاک او حمامونه د دهٔ په زمانه او دوران کښې ستوالئ وموند.

کله چې د دهٔ د پادشاهۍ څلور سوه کاله تېر سوي ول، شیطان ئې لار ووهله، او دی کافر سو، او د خدایۍ دعوه ئې وکړه، خاوري دي ئې په خوله سي. پر دهٔ باندې نور څلور سوه کاله په کفر کښې تېر سول. حق تعالی د دهٔ بادشاهي ورڼګه کړه. له مشرق زمین څخه بیوراسپ کافر او ساحر پیدا سو. پر جمشید باندې په خښم سو. جمشید له دهٔ څخه وتښتېدئ. دی سل کاله په تېښته کښې لالهانده ؤ، څو چې په پای کښې ئې ونیولای سوای او انداري –انداري ئې کړ (منهاج سراج، د طبقات ناصري لومړی ټوک، ۱۳۴۲: ۱۲۵).

د منهاج سراج بیوراسپ به خود "بهیراسپه" وي چې مفهوم ئې (د لسو زرو آس سپرو سپاهسالار) ده. دغه نو د پرثووانو (پخوانیو پښتنو) په بادشاهۍ کښې یو کس نه، بل لا اوز کسان ول. په شاهنامه کښې د بیوراسپ پر ځای باندې ضحاک (څهاک) یاد کړۀ سوئ دئ، چې خود دی به هم بهیراسپه ؤ. څهاک د مېدیا (مېسیا، مېزیا) بادشاه ؤ. تر دهٔ دمخه دوه یا درې نور بادشاهان هم تېر سوي ول. لومړني ئې د پارسیانو په مرستې سره د اسوریانو خروړې بادشاهي ور ړنګه کړه.

کله چې یو شاه و شاهي ته د خلګو په مرستي سره ورسېږي او له شاهي څخه و بادشاهي ته ورسېږي نو تر څو چې ملت یا رعیت له دهٔ څخه خوښ وي او د دهٔ ملاتړ او حمایت کوي. دغسې بادشاه هم بریاوي لري. خو کله چې ملت له دهٔ څخه ناراضه سوئ وي. نو خود خدای هم له دهٔ څخه ناراضه او ناخوښه وي. ځکه نو یو او بل ځای ښورښونه ورته کیږي. او هم کله چې له دباندې څخه برید پر وروړل سوئ وي نو رعیت حلګ او لښکر ئې هم هغسې ملاتړ نه کوي لکه پخوا چې ئې کاوۀ. ځکه نو خدای څنې ناخوښه وي او په دغه سره ئې د قدرت کمبله هم ورټوله سوې وي.

خلګ به د شاه یا بادشاه په ظلم سره ناراضه وي، په ډېره ججه یا مالیه اخستني سره به ناراضه وي، یا لا د دهٔ په عیاشۍ او

فحشاوو سره به نژدې او لیري کسان ځني
ناراضه سوي وي. یا به لا د دې له نااهلۍ او بې
کفایتۍ له اسیته څخه داسي پیښه وي چې
مامورینو به ئې په ټولنه کښي شکوه نه او ډېري
نوري ناخوالي کوي، د ملت ناراضه کېدل هم
د خدای ناراضه کېدل دي.

### جمشید شوونه

دا چې د جمشید نوم دوه سپوښ دئ –
جم او شید – او هم پخوانیو مؤرخانو دغسي
تجزیه کړئ دئ، دغسي وېشنه ئې سمه او د
منلو وړ ده. دا چې مجمل "شید" د (روښنايي)
په مانا سره اخستئ دئ، هم سمه او د منلو ده.
خو دا چې بل چیري ئې د "خور" یا نمر په مانا
سره بولي، سهوه ده. ځکه چې "خور" په خپله
له "شید" سره ترکیبي نوم "خورشید"
جوړوي چې مانا ئې (د نمر روښنايي) کیږي.
له دغه "خورشید" سره په معادله کښي سم دم
"جمشید" برابریږي. که به نه ګانه څوک له
دغي معادلې څخه قیاس وکړي نو "جم" به
"خور" وي، نه (سپوږمۍ)، لکه ابوالفداء چې
داسي بللې ده.

دا چې پخوانیو مؤرخانو چې د خپلي
زمانې پوهان هم دوی ول. ولي داسي سهوه
کړې ده، زه هم هېښ پیښ ورته پاته یم. دغه
کار ئې دونده د هېښتیا وړ نه دئ لکه
"جمشید" چې ئې د شاه یا شخص نوم هم
بللئ دئ. دا لا څه چې بادشاهي ئې کړې ده او
لا تاریخي شهادت هم لري چې هغه ئې د
بادشاهۍ بیان دئ. ځکه نو دغه تاریخ نه بل
لا وګړپوهنه Folklore ده.

تر هغه ځایه پوري چې زه د سوهیلي
لوېدیځي اسیا له تاریخه سره څه پوه لرم، د
جمشید په نامه سره کم بادشاه یا بل سرغنه
ستوالئ نه لري. چیري چې ئې لري، هغه د
پرء دیانو غلط فهمي ده، ځکه چې جمشید د
شخص نوم کېدلای نه سي.

ما به ښایي تر رادء دمخه ګاولي کښلي
وي. ځکه چې نوم مي ئې توضیح کړئ نه دئ،
خو توجیهات مي ئې وګړپوهنه وبلله.

د جمشید نامه لومړنی لغت "جم" بېله
هل ؤ ول څخه "جام" دئ، او "جام" و (هسک
څلي) ته ویل کېدل. پر دغه هسک څلي
باندي ئې د دوو موخو یا مقاصدو له پاره اور
بلاوء. د دغه اورلګوني یوه موخه ئې دا وه چې
په شپه کښي ئې و کاروانیانو ته لارښوونه کړې
وي. څنګه چې په تودو سیمو کښي کاروانونه
د ورځي له خوا څخه تلای نه سوای، او د شپې
له خوا څخه ئې لار وهله. ځکه ئې نو ډېر داسي
کابو ؤ چې لار ئې ورکه کړې وای. په دښت
کښي یا پر هواره مخ پر بله خوا تللئ وای، او
داسي هم ښایېدله چې دغه چاره دي ئې د
مخنیوي له پاره وه. نو پر جام یا جګ څلي به
ئې اور د دې له پاره ورته بلاوء، څو کاروانونو
لار ورکه کړې نه وي. داسي ایسي چې پړاو پر
پړاو باندي به جام ؤ او پر سر باندي به ئې د
شپې له خوا څخه اور بل ؤ، څو و لارویانو ته ئې
د لاري څرک ورکړئ وي او د ورځي له خوا
څخه ئې د کاروانونو او لارویانو له پاره د جام پر
سر باندي د دود خوړسکه جوړوله. دا خود په
ساړء موسم کښي چې کاروانونو او لارویانو به
د ورځي له خوا څخه مزل کاوء.

د "جمشید" دوهمه او تر لومړنۍ هم
مهمه دنده ئې مخابره وه. د اورنیو نخښو په
وسیله سره ئې رسمي پیغامونه له شاهي
سرښار څخه و ولایاتو ته استول او هم له ولایاتو
څخه و سرښار ته لېږل کېدل. دغه اورنۍ
مخابره آن دا چې په تورات کښي لا ویجاړه
فهمول سوې ده. وروستنی بادشاه چې له
اورنۍ مخابرې څخه ئې په پېخر کار اخستی ؤ

هغه د غوري دولت بادشاه محمد غیاث الدین ؤ چي جام جم ئې لا تر اوسه پوري په غور کښې جوړ روغ ولاړ دئ او هم لیکني پر سوي دي.

جام جهان نما هغه جگ ځلئ ؤ چي د کلاوهلي ښار په منځ کښې به ولاړ ؤ او د هغه له سره څخه به ئې د محاصرې یا کلابندۍ په ترځ کښې هره خوا ځارله چي دښمن په څه شمېر سره چیري او څه راز اقدامات کوي. نو دغه کار د دې له پاره ؤ چي دوی ئې باید څنگه مخنیوی کړئ وي.

له نېکه مرغه ئې په کندهار کښې هم نخښې او نښانې پاته دي چي پوهاند صاحب عبدالشکور رشاد ئې په اړوند داسي کښلي دي:

"د قیتول د غره د آتشکدې یادوءنه میر معصوم په تاریخ سندهء کي کړېده. دغه آتشکده د لکي غره د قیتول پر سر ودانه وه او میرمعصوم په (۱۰۰۹هـ ق) کال وایي: "اوس لا هم دغه آتشکده ودانه پاته ده. دا آتشکده له خورا پلنو اومو خښتو څخه جوړه ده".

ما (رشاد) چي دغه آتشکده درې شپېته کاله پخوا لیدلې ده، رشتیا هم یو دهلېز ئې په پلنو اومو خښتو و خو د آتشکدې څه آثار چي پاته وه په هغو کي پخې خښتې کار سوي وې. دغه آتشکده د کندهار په دولتي کورنۍ کي د زردشتي دین جریان ښیي" (پوهاند رشاد ۱۳۸۴ : ۵۳، کندهار د تاریخ په اوږدو کښې، د مقالو ټولگه، د مطیع الله روهیال په زیار ۱۳۸۴ش، اطلاعات او کلتور)[1].

بله ئې دا چي اورغالئ یا آتشکده د اور نمانځني معبد ؤ چي نارینه وو او ښځمنو به د اور عبادت پکښې کاوه. نو دغسي نمنځغالئ باید د ښار په دننه کښې وای. هلته لوړ څوک په یخ او گرمۍ کښې نه ورختئ. نو ښېله هل ؤ ول څخه دغه د غره پر سر باندي اورغالئ د اورنۍ مخابرې له پاره ؤ. نو په ښار کښې دننه به هم د شاهي مانۍ له بام څخه و کوه طور (قیتول) ته پیغام وراستول کېدئ، او له کوه طور څخه به بیا و بل اورغالي ته مخ پر وړاندي دغه پیغام استول کېدئ، څو و خپلي مرجع ته رسېدلئ وي. هم دغسي به له نورو ځایونو څخه و قیتول ته پیغامونه ورکول کېدل چي کوه طور به په ښار کښې و شاهي مانۍ ته مخابره کول.

ډېر ښایي چي قیتول به کوه طور ؤ. دا چي په قرآن شریف کښې (طور سینین) یاد کړه سوئ دئ چي مراد ئې د سینای دښت د طور غر دئ چیري چي و موسی علیه السلام ته پیغام رسول سوئ ؤ چي په تورات کښې ئې داسي یادوءنه سوې ده:

د سینای غر په دود کښې ډوب ؤ. ځکه چي پر هغه باندي بادار په اور کښې ورکښته سوئ ؤ. (تورات، ایستنک ۱۹، ۱۸).

"بادار له تاسو سره مخامخ له اوره څخه وړغېدئ (هغه مهال زه پر غره باندي د بادار او ستاسو تر منځ ولاړ وم څو د بادار وینا مي و تاسو ته دررسولې وي، دا ځکه چي تاسي له اوره څخه بېرېدلاست، او ځکه نو و غره ته نه راوختلاست). (تورات، دفتر نامه، ۵، ۴).

له موسی علیه السلام سره بادار له اوره څخه ږغېدني ته د دیني روحانیت بڼه ورکړه سوې ده چي په واقعیت کښې اورنۍ مخابره وه، چي په وروسته کښې تحریف کړه سوې ده.

---

[1] ما د میر معصوم او علامه رشاد پر عبارت باندي څه لیکنه کړې وه، خو هم هغه راڅخه ورکه ده او هم مي ئې اخستیځ هم نور په یاد نه ؤ. زه له ښاغلي روهیال څخه مننه کوم چي اړونده اخستیځ ئې راوموند او راوسپاره. زما کتابونه وړل سوي دي.

د تورات وړاندنۍ یاده کړې پېښناوله، د کندهار د قیتول (کوه طور) تر پېښناولې څه درې نیم زره کاله دمخه پېښه وه، چې لا هم هغه زمان تحریف کړه سوې وه چې غلط فهمي ئې لا تر اوسه پورې هم سته او چاسمه ښوولې او روښانه کړې نه ده. په یوء امریکایي فلم کښې، چې لس احکام The Ten Commandments نومېږي. دغه له موسی سره د بادار له اوره څخه ږغېدنه ئې خورا هېښانده dramatic ښوولې ده.

د کندهار کوه طور چې تورکي کړء سوئ شکل ئې قیتول دئ او په خپله دغه هم د غلط فهمۍ پېښه ده. د لکي غرء اورغالئ به د طور سینین سره په شباهت او د هغه په پالني سره په "کوه طور" بلل سوئ ؤ. تورکان چې به ئې له دغه مناسبته څخه ناآگاه ول، نو ئې د خپلې ژبې له اداینې سره سم قیتول کړئ دئ، لکه گل چې ئې قل کړئ دئ، لکه رحمان گل – رحمان قل، یارگل – یارقل، عثمان گل – عثمان قل او داسې نور.

دا چې په کندهار کښې بل ځای چې زء ئې په باور سره د اورنۍ مخابرې اورغالئ بولم هغه د سپېروان پر شاگۍ، غرگوټي، باندې واقع دئ چې هورې هم ورسره په څنگ کښې د اوسېدنې خونه وه او هم اورغالئ ؤ. هورې ئې په نژدو کښې یو ډبرلیک هم سته. دغه آثار او نخښې اوس هم پېژندویه پاته دي.

بادشاه محمدغیاث الدین به د پیروزکوه له هسک جام څخه خپل احکام او فرمانونه د خپل سلطنت و لیرو او نژدو ښارونو ته استول او هم به ئې د دغو اورنیو نخښو په وسیله سره له بېلابېلو ولایاتو څخه اطلاعات اخستل. دې چې به هر چیرې ؤ، د هغه ښار د جام شید یا اورغالي په وسیله سره به ئې د خپلې امپراطورۍ له اوضاع څخه ځان خبراوء، او هم به ئې لازمي اړونده اوامر او فرمانونه په اورنیو نخښو سره ورمخابره کول.

چیرې چې غرونه نه ول، یا اورنۍ مخابره ځنې کېدلای نه سوای، نو له جامونو یا هسکو ځلو څخه کار اخستل کېدئ. په پای کښې به لا یوه پلا بیا هم وکاږم چې د "جمشید" لومړنۍ برخه "جم" عبارت له "جام" (هسک ځلې) څخه دئ. او "شید" ئې دغه اورنۍ روښنایي وه. په عربي ژبه کښې د "جامشید" معادل لغت "منارة" ده چې د اورغالي مانا لري. مانا د مناره پر سر باندې هم اور بلېدئ. د عربي هیوادونو لویه برخه هوار وسیع دښتونه ول او دې نو په دښت کې له کاروانونو او نورو لارویانو څخه لار ژر ورکه کېږې او بیا په سرې سره په شپه کښې. ځکه نو د دغه ضرورت له مخې څخه دښتې هیوادونو و کاروانیانو او مسافرانو ته د اورغالي یا منارة په وسیله سره لار ورښووله.

دغه جام یوازې په غور کښې نه ؤ. بل لا هر هغه ځای چې اړتیا ئې وه. د احمدشاه بابا د دربار منشي ځان الجامي بللئ دئ – ای محمود الحسیني الجامي. له دغه جام څخه به خود د غور جام مراد نه ؤ. بل لا د هرات او مشهد سره هم یو ځای او بل ځای جام (جامونه) تر احمدشاهي زمانې پورې پاته ول.

هغه مملکتونه چې د دریاب پر غاړه یا ئې له بحر سره ساحل لارء لکه انگلستان او آیرلینډ او د مدیترانې د غاړو ممالکو اوسېدونکي ئې و دې ته اړ ول چې د شپې له خوا ئې د هغو بېړیو او کښتیو له پاره ئې پر هسکو ځلو باندې اور بل کړی وي یا ئې د دود لوخړه یا خوړسکه ورته جوړه کړې وي څو دغو بحري وسایلو لار یا اړونده ځرک ورک کړئ نه وي. و دغسې جمشیدونو ته په انگلیسي ژبه کښې لایټ ټاور (روښنا ځلئ) Light Tower

ویل کیږي چې هم هغه د اورغالي یا جامشید مفهوم ښووي.

د پیروزکوه د جام دباندنۍ خوا بیان کړ سوې ده (د ادبیاتو پوهیځ، د ادب مجله) او په ډهلي کښې له قطب منار سره مقایسه کړ سوئ دئ، خو زه نه پوهیږم چې د جام دننه خوا هم چا مشاهده کړې او بیان کړې ده که نه؟ زه ګومان نه کوم چې په دننه کښې دي ئې زینې و سر ته ورخېژول سوي وي. ځکه چې په زینو کښې به ورختنګ خورا ګران کار ؤ. نو ښایي بادشاه محمد غیاث الدین دي د پیروزکوه د جام په اړوند هم له هغسي طلیسم یا میکنیزم mechanism څخه کار اخستئ ؤ لکه د بوست و هسکي مانۍ ته چې ئې اوبه ورخېژولې. د بوست هسکه مانۍ چې هم دغه بادشاه ودانه کړې وه، اوز پوړونه ئې لرل. د دغو پوړونو په څنګ کښې یو نری عمودي سوپ shaft ؤ چې له مځکي څخه تر سرني پوړ پوري رسېدئ. پر هر پوړ باندي ئې ورګوتئ لاره. په ډېري ښایېدني سره به اوبه په ژي zhay کښې خېژول کېدلې داسي ایسي چې د ودانۍ پر سرني پوړ باندي به دوې غرغړې وې. یوه به د نري ژور ځاګي سوپ له پاسه وه چې اوبه ئې و هر پوړ ته ورخېژولې، او بله غرغړه به له ودانۍ څخه دباندي وتلې وه. له دغي غرغړې څخه واښ و مځکنۍ غرغړې ته رسېدئ. له مځکنۍ غرغړې څخه به واښ په غوایانو یا اوښانو پوري تړلئ ؤ. اوښ والا یا غوایي والا به ټاکلي حدود پېژندل چې غوایي ئې تر کومي کرښي پوري بېولي وي څو د اوبو ژی و هغه اړوند پوړ ته ورخېژول سوئ وي.

په کوم میکنیزم mechanism سره چې ئې د بوست او کندهار و هسکي مانیو ته اوبه وروخېژولې په هم هغسي مېکنیزم سره به ئې د پیروزکوه د جام و سر ته "شیدوالا" یا هغه کس چې اورنۍ مخابره ئې کوله ورخېژاوه او هم به ئې خواړه او اړونده وسایل ورخېژول.

و چا ته به ښایي دا پوښتنه ورپیدا کېږي چې دغه اورنۍ نخښې ئې په څه سره ښوولې یا ادا کولې. دا خو هغسي لوړ په یوه یا دوو لرګیو سره کېدلای نه سوای او هم ژر سوځېدل. ډېر ښایي چې لرګی به ئې په ګوګړو، زغیرو یا شړشمو سره لاړه. ای شړشم به ئې په لرګي پوري موښلول. ځکه نو شړشم سوځي او لرګی ئې ژر نه سوځل کیږي. که به پېښه داسي نه وه، نو خود به و دغي ته ورته بله داسي چاره وه.

هله اینې هو، اینې هله ده
هو، دغه لا نه، نه یوه لا بله ده

بله لانچه دا ده چې دغه اورنۍ مخابره په تورو (حروفو) سره کېدله، که په نخښو سره. که به په تورو سره کېدله، نو به په اورني قلم سره ک ن د ه ا ر ج ن ګ د ی کښل کېدل یا به د لیکني غوندي پر "کندهار جنګ دی" کښل کېدل. یا دغسي پیغام به په نخښو Symbols سره مخابره کېدئ چې هري نخښې به و ځان ته بېله مانا یا مفهوم لاره. نخښې به ئې ښایي داسي وې، یوه ستوي.

او هم داسي نوري. دغه وروستنۍ غوندي نخښې به د دې له پاره کارول کېدلې څو نور کسان د پیغام په مفهوم پوهېدلي نه وي. دغسي کار په تورو سره هم کېدلای سوای. که به یو راز وي یا بل راز اورنۍ مخابرې په ټوله سوهیلي لوېدیځه اسیا کښې باب وې.

د پیغام استولو بله خپره وسیله کوترې وې چې لیکلی پیغام به ئې په پښې پوري ورتاړه. دغو کوترو هم لار پېژندله او هم ئې و خپل ښار ته ځان رساوه.

***

محمدهارون خپل شعشعي/لندن

# د «پېرۍ» په مانا کې تېروتنه

«پېرۍ» د هندي او پښتو ژبو خورا لرغونی ټکی دئ، چې له عمرونو څخه تر اوسه د پښتنو په اولسي محاورو او ادبي اثارو کې پراخ استعمال لري. علمي شواهد ښيي، چې دا ټکی په پخوا زمانو کې پر اولسي محاورو سربېره د پښتو په علمي – ادبي اثارو کې هم هر ځای په خپله سهي او اصلي مانا کارېدئ؛ خو له څو لسيزو راهيسې يې زموږ په تقريباً ټولو پښتو اثارو کې سهي او دقيقه مانا تر ډېر ځايه تحريف سوې؛ او له نوميالييو پوهانو څخه تر ما غوندي تازه کاره شاگردانو پوري، هر چيري د هر چا په خبرو او ليکنو کې په ناسمه او جعل سوې مانا کارېږي.

داسې ښکاري چې په ناسمه او غيردقيقه مانا د «پېرۍ» استعمال، د پښتو ژبې د «سوچه کولو» له غورځنگ څخه را پيل سوي يې(وي)؛ ځکه له همدې وخت څخه، «پېرۍ» هر چيري زموږ په سرکاري پښتو کې، د سلو کالو په مفهوم د عربي «قرن» يا هندي «سيکړې» پر ځای درول سوې ده؛ حال دا چې د عربي «قرن»، هندي «سيکړې» يا سنسکريت «سدۍ» پر ځای يې درول د دې ټکي په مانا کې تېروتنه او لاسوهنه گڼل کېږي. .

په دې لنډکۍ مقاله کې اول د ايتيمولوژۍ (ريښه پېژندني) او ليکسيکالوژۍ (لغتپوهني) له نظره د «پېرۍ» د مانا او مفهوم په اړه څو لنډې خبرې کوو؛ وروسته د علمي اسنادو او ادبي شواهدو په وړاندې کولو سره ښيو، چې «پېرۍ» پر هندي ژبه سربېره په پښتو ادب کې هم قطعاً د سلو کالو په مانا نه ده کار سوې. په دې خاطر ئې نو موږ هم بايد تر دې وروسته هيڅکله د «قرن»، «سيکړې» او «سدۍ» پر ځای استعمال نه کو. تر دې لنډو خبرو مخکې، راسئ په هندي او سنسکرېت/ سنسکريت ژبو کې هم د «پېرۍ» د پلار، مور او تربرو په باره کې يو څو ټکي بيان کو؛ ځکه د پښتو «پېرۍ» په واقعيت کې له هندي او سنسکريت ژبو سره نه شلېدونکې ارتباط لري. په بله وينا، «پېرۍ» په اصل کې له سنسکريت څخه و پښتو، پراکرېت/ پراکريت، هندي او ځينو نورو ايندو– آريايي (Indo-Aryan) ژبو ته تللې ده.

«پېرۍ» په هندي ژبه کې د معروفي/ لنډې او مجهوله/اوږدې ياء په دواړو بڼو راغلې ده. «پيړهي pīṛhī[1]» يې د معروفي/ لنډې ياء او «پېړي peṛī[2]» يې د مجهولي/ اوږدې ياء بڼه ده. و جمعي تې «پيړهياں/ پېړياں» وايي. په پراکريت کې د «پيړهيا piṛhīā[3]» او په سنسکريت کې د «پيټهيکا piṭhikā[4]» په ډول راغلې ده. البته، په سنسکريت او هندي کې و «پېرۍ» ته نور مترادف او متقارب ټکي هم استعمالېږي، چې ځيني عام او مشهور يې دا دي (د ښې او دقيقي پېژندنې دپاره هر ټکی په

لمنلیک کي په اصلي دېوناګري Devanāgri لیکدود هم کښل سوئ دئ): پرَجَنَن prajnan[5]، جَنَن janan[6]، اوتپادَن utpādan[7]، اوُتپتي utpatti[8]، سنتان santān[9]، ونش vanś[10]، پؤشت puśt[11] او داسي نور.

په دې ډله کي «پښت» کلیمه زموږ له ژبي او فرهنګ سره ډېر نیږدې او ټینګ اړیکی لري. دا کلیمه په واقعیت کي د سنسکریت له «پرَښټهـ/ پرَښټهـ prașțh[12]» ټکي څخه را وتلې ده؛ او له اوږدو زمانو څخه په پښتو ژبه کي استعمالېږي. د سنسکریت «پرَښټهـ/ پرَښټهـ» په زند کي د «پَرش parś» او په پارسي کي د «پُشت puśt» په بڼه اوښتې ده[13]. هندي ژبې هم کټ مټ پارسي بڼه خپله کړې ده؛ او په پوره مینه یې په خبرو او لیکنو دواړو کي کاریي.

د هندي ژبي په ټولو معتبرو او مؤثقو فرهنګو کي «پیړهي/ پېړي» په دغو دوو ماناوو ثبت سوې ده، چي له هغو څخه یې یوازي لومړۍ مانا زموږ د پام وړ ده:

۱/ پښت، نسل، خېل، ټبر، کورنۍ، ټبر سوي او راټلونکي نسلونه (اجداد او اولاد)، چي په انګرېزي کې «generation»، «age»، «group»، «descent»، «extraction»، «pedigree» او داسي نور بولي.

۲/ هغه کوچنۍ، جګه او بې لاستي چوکۍ، چي په انګرېزي کې د سټوُل (stool) په نامه یادیږي[14].

لکه څنګه چي ګورو، د «پېړۍ» په دې دواړو ماناوو کي د سلو کالو یا سل کلنۍ هیڅ یادونه نسته. باید هم نه یې؛ ځکه د سلو کالو یا سلو (سده، قرن، سیکړه) او پېړۍ (پښت یا نسل) تر منځ خو ډېر لوی توپیر دئ. له همدې خاطره په هندي او نورو ایندو - آریایي ژبوکي د سلو کالو دپاره زیاتره دغه ټکي کارېږي: پَداهتي padhdati[15]، شَتَک śatak[16]، شَتابدي śatābdī[17]، شَیلي śailī[18]، سَدي sadī[19]، سیکړا saikŗā[20]، سَوُ سال sau sāl[21]، سَوُ ورښ/ورش sau varş[22].

په خواشینۍ سره، زموږ زیاتره لیکوال او څېړونکي د «پېړۍ» او «سدۍ» د لغوي مانا د تحقیق دپاره د هندي قاموسو د لیدو امکانات نه لري، ځکه نو بې ګټي نه ده، چي دې اړتیا ته په پام سره د «پېړۍ» د لغوي مفهوم د لا ښه توضیح او تفسیر دپاره د هند د محبوب سندرغاړي، پنکج اؤدهاس، په ښکلي ږغ کي د «یکیسوي سدي» تر عنوان لاندي د هندي شاعر، ظفر ګورکهپؤري، د خوندور نظم ویډیویي بڼه وړاندي کو. ښاغلي اؤدهاس د دې په زړه پوري نظم د محتوا تشریح کولو په ترڅ کي د «پېړۍ» مفهوم هم په خورا ښه ډول بیان کړئ دئ. د یوټیوب په دې ویډیو کې وګورئ او خوند واخلئ:

https://www.youtube.com/watch?v=BHQjOYERMVI

د «پېړۍ» او «سدۍ» فرق په څه کي دئ؟

«پېړۍ» د نیکه، پلار، لمسي، کړوسي، کودي او داسي نورو په شان یوه نسل یا یوه پښت ته وایي؛ حال دا چي «سدۍ»، «سیکړه» یا «قرن» درې سره د پوره سلو کالو په مانا دي. په یوه سدۍ یا یوه قرن کي معمولاً درې، خو استثناءً څلور یا پینځه (نیکه، پلار، زوی، لمسی، کړوسی) پښته ژوند کیي. که و وایو: «درې سدۍ، درې سیکړې یا درې قرنه مخکي». مانا یې دا ده چي نه یوکم نه یو زیات پوره درې سوه کاله دمخه. که و وایو: «درې پېړۍ دمخه». مانا یې دا ده، چي درې پښته یا درې نسله دمخه. دا درې پښته که له حاضر نسل څخه و لوړي خوا ته وشمېرو، نو پلار

دوهم او نیکه دریم پښت بلل کیږي. برعکس، کې له حاضر پښت څخه وکښتي خوا ته وشمارو، بیا نو زوی دوهم او لمسی دریم پښت بلل کیږي. بل مثال: که څوک و وايي: «موږ شپږ یا اووه سدۍ په پلاني ځای کې استوګه کړې ده». مانا یې په روښانه ډول شپږ یا اووه سوه کاله دي. که و وايي: «زموږ شپږ یا اووه پیړۍ په پلاني ځای کې مېشتي وې». د دې خبرې مانا دا ده، چې شپږ - اووه نسلونه یې په پلاني ځای کې مېشت وو. کېدای سي دا شپږ - اووه نسلونه ګرده په دوو - دوو نیمو سوو کالو کې تېر سوي یې؛ حال دا چې شپږ - اووه قرنه پوره شپږ - اووه سوه کاله کیږي. دوه - دوه نیمه سوه کاله چیرې او شپږ - اووه سوه کاله چیرې؟! د دې دوو زماني واټنو په مینځ کې د شلو - دېرشو کالو نه، بلکې سوو کلونو فرق دئ.

البته، که څوک و وايي، چې موږ له پېړیو پېړیو څخه په بزګرۍ، سوداګرۍ یا څه بل کسب و کار اخته یو، دا کاملاً سمه او سهي خبره ده؛ ځکه دلته و سووکلونو ته نه، بلکې د اسلافو او اخلافو (پلرو او اولادو) و څو نسلو ته اشاره سوې ده.

په دې ترتیب ګورو، چې پښت یا نسل د انسانانو، حیوانانو یا نورو موجوداتو هغه ډلي یا ټولۍ دي، چې په یوه ټاکلي عصر او زمان کې ژوند کیي. موبایل فونونه په پام کې ونیسئ. واردواره یې جسم غټ، خو کمال لږ ؤ. څو کاله وروسته یې جسامت کوچنی، خو صفتونه او ښېګڼې یو څه زیاتي سوې. شل کاله وروسته دا دئ د موبایل فونو په ټیکنالوژۍ کي د یوه اریانؤنکي انقلاب شاهدان یو؛ ځکه هر سمارټ فون (smart phone) په خپل کوچنیوالي سره د یوه پېچلي او پرمختللي کمپوټر کارونه او کمالونه کیي. په انګرېزي ژبه کي د دغو موبایل فونو و هري ټولۍ یا هري ډلي ته نوی «جنریشن generation» فونونه وايي، چې ترجمه یې په پښتو کي همغه پېړۍ، پښت یا نسل کیږي.

موږ و تاسي د سر په سترګو و کتل، چې د موبایل فونو هر جنریشن تر اوو - اتو کالو زیات وخت نه دئ نیولئ. بېله شکه د ساینس او ټیکنالوژۍ نور پیدوار هم موبایل فونو غوندي تر څه مودې وروسته خپل شکل او شمایل اړيي؛ او په دې توګه و خپلو نوو نسلو یا جنرېشنو ته لار هواريي.

د دې استدلال له مخي، څنګه کولای سو سل کاله (قرن) او پېړۍ یو شی و بولو؛ او د مترادفو ټکو په څېر یې یو د بل پر ځای استعمال کو؟! د ساینس او ټیکنالوژۍ په نړۍ کي خو د پېړۍ یا جنرېشن موده حتا د انسانانو او حیوانانو تر پېړۍ یا پښت هم ډېره لنډه ده، چې په هیڅ وجه له سدۍ یا قرن سره د پرتلي وړ نه ده.

«سدۍ» که څه هم په اصل کي له سنسکریت «شت sat»[۲۳] څخه را ټوکېدلې ده، چې د سلو مانا لري؛ خو په اوسني رنګ او شکل له هندي ژبې څخه و پښتو ته را غلې ده، چې هغه هم په خپل وار سره د پارسي ژبې له «سده» څخه اخیستل سوې ده[۲۴]. تاسي وګورئ، هندي ژبې د سنسکریت «شت» له ریښې څخه د پارسي ژبې «سده» خوندي کړې ده، خو موږ په پښتو کي دا تاریخي ټکی له یاده ایستلئ دئ. د افغانستان په معاصرو لیکوالو او څېړونکو کي، یوازي استاد حبیبي (۱۲۸۹ش/ ۱۹۱۰ع - ۱۳۶۳ش/ ۱۹۸۴ع) او استاد رشاد (۱۳۰۰ش/۱۹۲۱ع - ۱۳۸۳ش/ ۲۰۰۴ع) کله کله د «پېړۍ» او «قرن» ترڅنګ په خپلو لیکنو کي کاروله.

پر «سدۍ» او «قرن» سربېره، «سیکړه» هم زموږ په عامو خلگو کي د سلو (۱۰۰) عدد او سلو کالو په مانا پراخ استعمال لري.

لکه څنگه چي مخکي هم اشاره وسوه، «پېړۍ» نورو ایندو- آریایي (Indo-Aryan) ژبو غوندي، زموږ په لرغوني ادب کي هم هر ځای د پښت، نسل او داسي نورو په مانا راغلې ده، نه د سلو کالو په مانا، چي نن سبا یې بې استثناء د هر چا په خبرو او لیکنو کي گورو. دلته یې د پښتو ادب د وتلي او منلي بابا – خوشال خان خټک (۱۰۲۲- ۱۱۰۰ هـ ق) له گلیاتو څخه څو بولگې وړاندي کوو:

شپږ اووه پېړۍ زما و گور ته ولاړې
همگي په وینو رنگ، په تېغ ورژلي
(د خوشال خان خټک کلیات: ۶۵۶)

په یو بل بیت کي وایي:

د چنگېز لښـــکر کافـــــرو
څو پېړېې [پېړییه] ستمگرو
(د خوشال خان خټک کلیات: ۸۲۰)

بل ځای یې داسي راوړي دي:

د مغول نمک مي و خوړ شپږ پېړۍ
ما د زړو په کې روغي کـــړې بېړۍ
(د خوشال خان خټک کلیات: ۹۱۹)

په دغو درو سرو بیتو کي له ورایه گورو، چي خوشال خان خټک هر ځای «پېړۍ» د پښت یا نسل په مانا کار کړې ده، نه د قرن یا سلوکالو په مانا؛ ځکه دا روښانه تاریخي حقایق له هیڅ پوه او باخبره لوستونکي څخه پټ نه دي، چي نه چنگېز څو سوه کاله ژوند کړی ؤ؛ او نه هم خوشال خان خټک په یوازي سر شپږ – اووه سوه کاله د مغولو نمک خوړلی ؤ. په دواړو حوالو کي هدف او مخسد همغه څو پښتونه یا نسلونه دي، چي گرده په واقعیت کي د دوو – دوو نیم سوو کالو په شاوخوا کي تېر سوي دي.

تاسي وگورئ د پښتو مبتکر او مفکر شاعر په څونه فصاحت او بلاغت تاریخي واقعیتونه بیان کړي دي؛ خو موږ بیا هم د هغه د فصیح او بلیغ کلام په مفهوم سر نه خلاصوو یا یې نه سو خلاصولای. د خوشال خان خټک کلیات څو پلا د نومیالیو پښتنو او غیرپښتنو څېړونکو له خوا په افغانستان، پښتونخوا او اروپا کي تصحیح سوي او چاپ سوي دي؛ ځینو «پوهاندانو» او «ډاکټرانو» خو لا د خوشال ادبي «فرهنگ» په نامه د هغه د شاعرۍ پر لغوي زېرمه هم اوږدې پرېړې کښلي دي؛ خو سره له دې هم هیڅ لیکوال او څېړونکي تر ننه د هغه فرزانه شاعر په کلام کي د «پېړۍ» سهي او دقیق مفهوم نه دئ پېژندلئ! د خواشینۍ ځای خو لا دا دئ، چي دې او داسي نورو لغوي تېروتنو له ښایسته ډېره وخته د پښتو ژبې و ډول ډول قاموسو ته هم لار پیدا کړې ده. د افغانستان د علومو اکاډیمۍ پښتو – پښتو تشریحي قاموس، چي تر دې دمه د پښتو ژبې تر ټولو غني او علمي قاموس گڼل کېږي، هم له دې تېروتني څخه خوندي نه دئ پاته. د «پېړۍ» په ماناوو کي له یوې خوا «نسل» او له بلې خوا قرن یا سل (۱۰۰) کاله لیکلي دي[۲۵].

کله چي د اکاډیمیکو قاموسو په لیکنه کي هم د پلټني او څېړني پر ځای د شخصي تصرفاتو او ړانده تقلید لار واخیستله سي، بیا خو د تېروتنو، تصرفاتو او تحریفاتو و سمېدو ته هیڅ هیله او اومید نه پاتېږي. شک نسته چي نور عالَم هم د څېړني او پلټني په کار کي تېروتني او تصحیفونه کیږي، خو د هغو ښېگڼه او کمال په دې کي دئ، چي د ژوندانه هر اړخ او هري پېښي ته په انتقادي او اصلاحي نظر گوري. همدا وجه ده، چي په هغوی کي علمي

تېروتني ډېر ژر برملا کېږي. برعکس، زموږ په تاریکه او سرتړلې ټولنه کې له دیني عقایدو څخه را نیولې بیا تر ژبپوهني، لغتپوهني او نورو علمي څانګو پورې هر څه په پټو سترګو د پخو او منلو حقایقو په توګه منل سوي او منل کېږي، چې دا کار په خپله د تېروتنو، تصرفونو او تحریفونو و نه پېژندلو او پایښت ته لار هواري. د دغه راز پېچومو او ګډوډیو د مخنیوي تر ټولو ښه او ګټوره لار دا ده، چې زموږ درانه ژبپوهان او متنپوهان هیڅکله د خلګو په ژبه او ادبي اثارو کې خپلسري لاسوهني و نه کي؛ د ژبې هر ټکي او هر عبارت ته په انتقادي نظر وګوري؛ او د هري غوټې او غوټاشې د خلاصولو دپاره د علمي موازینو په رڼا کې و نه سترې کېدونکو څېړنو او پلټنو ته اوږه ورکي. که د خلګو په شفاهي او تحریري ادب کې د پېچلو، تاریکو او شکمنو موضوعاتو د حل، توضیح او تفسیر څه څرک و نه موندل سو، هغه مهال نو خپل نظر د شخصي قیاس او ګومان، نه پاخه او ثابت کاڼي، په توګه و خلګو ته وړاندي کي. علمي او معیاري فرهنګ لیکوونکي هم باید په خپل وار سره د بېلابېلو ټکو د سهي او دقیقو ماناوو په موندنه پسي پرله پسې خولې توی کي؛ د هغو ټکو، عبارتو او اصطلاحاتو د سمي او دقیقي پېژندني دپاره پراخ شواهد و پلټي، چې ماناوي یې واضح او روښانه نه دي.

***

یادښتونه او ماخذونه:

पीढ़ी[۱] पेड़ी[۲] पी□आ[۳] पीठिका[۴]

प्रजनन[۵] जनन[۶] उत्पादन[۷] उत्पत्ति[۸]

संतान[۹] वंश[۱۰] पुश्त[۱۱] पृष्ठ[۱۲]

[۱۳] John T. Platts, A dictionary of Urdu, classical Hindi, and English (London: W. H. Allen & Co., ۱۸۸۴) ۲۶۳.

[۱۴] وګورئ په دغو هندي قاموسو کي د «پېړۍ» دوې عامي او مروجې ماناوې:

Badri Nath Kapoor, Advanced English – Hindi Dictionary (New Delhi: Prabhat Prakashan, ۲۰۱۲) ۵۲۰.

Girirag Sharan Agarwal & Baljit Singh, Diamond Hindi – English Dictionary (New Delhi: Diamond Pocket Books, ۲۰۱۲)۱۸۹.

John Shakespear, A dictionary, Hindustani and English, ۳rd ed. (London: Allen, & Co., ۱۸۳۴) ۴۶۹, ۱۹۵۷.

John T. Platts, A dictionary of Urdu, classical Hindi, and English, (London: W. H. Allen & Co., ۱۸۸۴) ۲۶۳.

Mahendra Caturvedi, A practical Hindi – English dictionary (Delhi: National Publishing House, ۱۹۷۰) ۴۲۸.

S. K. Verma & R. N. Sahai, Oxford English – Hindi Dictionary, ۵۴th impression (New Delhi: Oxford University Press, ۲۰۱۳) ۳۰۷.

S. W. Fallon, A new Hindustani – English dictionary, with illustrations from Hindustani literature and folk-lore (London: Trubner and Co., ۱۸۷۹) ۳۹۴.

पध्दति[۱۵] शतक[۱۶] शताब्दी[۱۷] शैली[۱۸]

सदी[۱۹] सैकडा[۲۰] सौ साल[۲۱] सौ वर्ष[۲۲]

शत[۲۳]

[۲۴] ځیني بې خبره کسان د «صد» په ظاهري جوله تېروزي؛ ځکه نو د عربي کلیمې ګومان

پر کيي؛ په داسي حال کي چي «صد» په واقعيت کي د پاړسي «سد» معربه بڼه ده. البته، دا تعريب عربانو نه، بلکي پاړسي ژبو ليکوالو او شاعرانو په خپله کړئ دئ. عربان «سد» يا «صد» د سلو په مانا نه پېژني، بلکي د دې مخسد دپاره خپل اصيل ټکی «مائة» کاريي. ويل کيږي چي د پاړسي ادب مخکښانو د خپلي ژبي له ځينو مشابه ټکو څخه د بېلولو په خاطر، په لوی لاس خپله «سد» کليمه د «صد» په عربي رنګ او جوله رواج کړې ده. وګ: د علامه دهخدا په لغتنامه، د ډاکټر محمد معين او حسن عميد په فارسي فرهنګو کي د «سد» شرحه. د پاړسي د معرب «صد» پر خلاف بايد، پښتو «سدۍ» هيڅکله په عربي صاد و نه ليکل سي.

[25] ځېړنمل عزيزالله امرخېل، ځېړنيار محمد نعيم سالارزی، ځېړنيار علي محمد منګل، ځېړنوال دوکتور دولت محمد لودين، ځېړنوال دوکتور سيدالشاه پولاد، ځېړنوال دوکتور عبدالحکيم هلالي، ځېړونکی نصير هنر پښتون، ځېړونکی ميرولي نيهام، ځېړنوال حبيب الله اپرېدی، ځېړنوال عبدالرحيم خدراڼ، ځېړونکی حضرت محمد وياړ، ضياء احمد ندرت، عبدالواحد فراهي، عبدالباري جهاني او ځېړنوال دوست محمد دوست، د پښتو- پښتو تشريحي قاموس، ۴ ټوکه، دوهم چاپ (کابل: ميديوتيک، ۱۳۸۳) ۵۶۷.

***

ليکوال: جبران خليل جبران

مترجم: احمدالله څرګند

**بله ژبه**

زما د زوکړي دريمه ورځ وه، په نرمه زانګو کي پروت وم او پر ما چاپېره نوي نړۍ ته مي په ځير – ځير او اريان – اريان کتله، چي په دغه وخت کي زما مور له دايي څخه پوښتنه وکړه: "زما زوی څنګه دئ؟"

دايي جواب ورکړ: "هغه جوړ دئ آغلي، ما درې وخته شيدې ورکړي دي، او ما تر اوسه دونده ناني او خوشحاله کوچنی نه وو ليدلی".

ما ته درد راغی او چيغي مي کړې: "دا درواغ دي مور! زما بستره کلکه ده او هغه شيدې چي ما و رودلې زما خوله ئې را ترخه کړه او د تيانو بوی زما پر پزه بدولګېد؛ زه ډېر بدبخته يم".

مګر نه زما مور پوهه سوه او نه دايي، ځکه زما ژبه د هغي نړۍ وه چي زه تازه ورڅخه راغلی وم.

زما د عمر په يوويشتمه ورځ، چي پر ما ئې نوم ايښوده، پادري زما مور ته وويل: "ته ډېره بختوره يې آغلي، چي ستا زوی پر مسيحي دين پيدا سو".

زه حيران سوم او پادري ته مي وويل: "نو ستا مور به ضرور بدبخته وي، ولي چي ته پر عيسوي دين نه يې پيدا سوی".

مګر پادري هم زما په ژبه پوه نه سو.

اووه مياشتي تېري سوې، يوه ورځ يو فال بين وليدم او بيا ئې زما مور ته وويل: "ستا زوی به يو سياستوال او ستر رهبر جوړ سي".

زه په ژړا سوم: "دا وړاندوينه درواغ ده؛ زه به يو مطرب جوړ يږم، بل هيڅ شی هم نه".

خو په هغه عمر کي هم زما په ژبه څوک نه پوهېدل؛ زه ډېر ورته حيران وم.

اوس چي درو دېرش کاله تېر سوي دي، زما مور، دايي او پادري ژوند ته الوداع ويلې ده، (الله دي پر ورحمېږي) خو فال بين لا ژوندی دئ. پرون مي د کليسا له دروازې سره وليدی، په خبرو- خبرو کي ئې راته وويل: "زه پوهېدم چي ستا څه به يو ښه موسيقي پوه جوړېږي، ته په اوښي کي وې چي ما دا وړاندوينه کړې وه".

ما ئې هم په خبرو باور وکړ، ځکه چي زما د هغي بلي نړۍ ژبه هېره سوې وه.

***



ليکوال: استاد محمدمعصوم هوتک/کاناډا

# سید جمال الدین افغان په کندهار کي

سیدجمال الدین افغان (۱۸۳۸ـ ۱۸۹۶ع) دوه واره کندهار ته تللی دئ. اول وار د ۱۲۸۳ هـ ق کال په رجب = نومبر ۱۸۶۶ع کي او دوهم وار تر لومړي سفردوه کاله وروسته د ۱۲۸۵ هـ ق کال په شعبان کي. په اول وار ئې هوږې اته میاشتي تېري کړي دي او د ۱۲۸۴هـ ق په ربیع الاول کي څني راوتلی او کابل ته تللی دئ. کندهار ته لومړي وار راتګ ئې تر یو لړ سفرونو وروسته پېښ سوی دئ. موږ ته معلومه ده چي سید په هرات کي د امیر شېرعلیخان د پاچهۍ په مراسموکي (۱۲۷۹ هـ ق = ۱۸۶۲ع) حضور درلود. تر دغو مراسمو وروسته کابل ته تللی او د امیر په دربار کي ئې د "اصلاح او تجدد" حرکت پیل کړی دئ. درې کاله وروسته د دوهم وار له پاره تهران ته ولاړ (رجب ۱۲۸۲هـ ق) د۱۲۸۳ هـ ق کال په محرم کي له تهرانه د خپل وطن په نیت راوتلی او د مشهد (طوس) له لاري هرات ته راغلی دئ. په هرات کي تر اتو میاشتو تېرولو وروسته کندهار ته د ۱۲۸۳هـ ق کال د رجب په میاشت کي رارسېدلی دئ. دغه وار راتګ ئې موږ د ده د لومړي راتګ په توګه ګڼو. په دغه سفر کي ئې واردواره د کندهار په ښکارپر بازار کي د حیتن یا جیتن هندو په مسافر خانه ځای نیولی دئ. په ښکارپر بازار کي د هندوانو پنځه سرایه ما (هوتک) ته معلوم دي چي په اول سر کي به غالباً د مسافرو د استوګي سرایونه ول، خو وروسته د سوداګرو تجارتخانې پکښې جوړي سوي دي.

د بازار په شمالي خوله کي د قبلې خوا ته سرای چي د تاراسنګهـ سرای نومېږي. دا سرای وروسته د اسعارو د تبادلې مرکز سو، ځکه ئې د کلدارو سرای باله. دا سرای اوس هم په همدغه نامه سته.

د تاراسنګهـ سرای جنوبي لور ته یو بل

سرای وو چې څنځیري سرای ئې باله. د دغه سرای اول مالک یو هندو وو خو وروستی څښتن ئې د چغتیانو د کورنۍ یو تن وو. د بازار په شمالي خوله کې د لمرختو خوا ته یو سرای وو چې د کونج سرای ئې باله. د سرای عمومي دروازه ښکارپر بازار ته خلاصېدله. دغه سرای حاجي عبدالرحیم بالاکرزي په بیه رانیو او له سره ئې پوخ ودان کړ. عمومي دروازه ئې د کابل بازارخواته ورکړه او فرعي ئې د ښکارپر بازار خوا ته. دا سرای اوس هم په همدغه نامه ستره.

د کونج سرای جنوبي خوا ته بل سرای د موتي سرای په نامه وو. دغه سرای حاجي حبیب الله خان پوپلزي رانیو او د حبیب مارکیټ په نامه ئې پوخ سرای پر ودان کړ. اوس هم په همدغه نامه ستره.

په ښکارپر بازارکي بل سرای د باناسرای په نامه هم وو[1].

د حیتن هندو سرای به چې سید جمال الدین افغان ئې یادونه کوي، غالباً څنځیري کاروانسرای وو. د دغه سرای د نامه حال راته معلوم نه دئ، خو څلوېښت کاله پخوا ئې د (کاروانسرای) نوم عام وو. دا نور ئې (سرایونه) بلل خو دغه سرای ئې کاروانسرای باله، ځکه نو زه فکر کوم چې همدا به د حیتن هندو سرای یا کاروانسرای وو.

علامه سید په دغه سرای کې زیات وکم یوه میاشت واوسېدلی او د همدې کال (۱۲۸۳ق) په شعبان کې د کندهار یوه بل کاروانسرای ته چې په هرات بازار کې وو، د استوګې له پاره کډه سو. د دغه سرای موقعیت ما ته دقیق نه رامعلومېږي خو په غالب احتمال به هغه سرای وو چې د شېرعلیخان کوڅې لوېدیځ ته د ډاګیانو کور ته څېرمه واقع وو. دا سرای له نن څخه څلوېښت کاله پخوا لا هم ولاړ وو او د کواړي سرای ئې باله، د استوګې کوټې ئې هم درلودې. سیدجمال الدین افغان په دغه سرای کې د ۱۲۸۴ کال تر ربیع الاول پوري اته میاشتې

---

[1] زه فکرکوم چې دا سرای به د کندهار د مشهور طبیب (بونا) ملکیت وو. د بونا طبیب دوکان په کابل بازار کې وو. وایي چې د کوچنیانو د نشه کولو کپه ئې ډېره مشهوره وه. په کندهار کې به ښځمنو د یوې بوري مور له خولې یوه بدله ویله چې کسر ئې: "آمسلمانانو د بونا کاپر کپه!" وو. تر دې پوري مي یو بله لطیفه هم را په یاد سوه چې په لیکلو ارزي:
وایي کله چې ارواښاد عبدالخالق واسعي وزیږېد، تر دغي نېټې څو میاشتي پخوا د تهذیب الواجبات د مؤلف ملاعبدالباقي اخند هم زوی پیدا سوی وو او نوم ئې عبدالخالق پر ایښی وو. ملاعبدالباقي اخند د مبارکۍ له پاره د شهید عبدالواسع اخندزاده کور ته ورغی کله چې شهید عبدالواسع اخندزاده ورته راووت او کور ته ئې د ورتګ غوښتنه څني وکړه، ملا عبدالباقي اخند چې د چا کور ته د ننه نه ورتی، په دروازه کې ورته وویل: "اخندزاده! مبارک دي سه، وایي زوی دي پیداسوی دئ. نوم دي عبدالخالق پر ایښی دئ. زما د زوی نوم هم عبدالخالق دئ. عوام الناس په دې خبره خوابدي کېږي چې ولي پلاني پر خپل زوی باندي زما د زوی نوم ایښی دئ. دا خبري له جهالته کېږي. زه هم ستا په زوی او هم ئې په نامه ډېر خوشاله سوم. د مسلمانانو خو همدا نومونه دي. یا به عبدالباقي وي، یا به عبدالواسع وي، یا به عبدالخالق وي. نو اوس خو به دي (بونا) نوم نه پر ایښناوه!"

اوسېدلی دئ. په همدې سرای کې ئې د (مرآة العارفین) په نامه یوه رساله په عربي ژبه وکښله. د رسالې بشپړ نوم (مرآة العارفین فی ملتمس زین العابدین) دئ. ځیني کسان وایي چې دغه زین العابدین نومی د علامه سید جمال الدین له "بنی اعمام" څخه وو. رساله ۲۲ مخه ده او په پای کې ئې لیکلي دي: "کتبه عبدالله جمال الدین الافغانی الکابلی فی بلدة قندهار فی یوم الاحد ۲ شهر ذی الحجة الحرام ۱۲۸۳".

علامه سید د کندهار د هرات بازار له سرایه څخه د ۱۲۸۴ق کال په ربیع الاول کې ووت او کابل ته ولاړ. دا نو هغه وخت دئ چې امیر محمدافضل خان مړ سوی او پر ځای ئې امیر محمداعظم خان پاچا سوی دئ. سید جمال الدین افغان له کابل څخه د امیر شېرعلیخان تر دوهم وار پاچا کېدو (شوال ۱۲۸۵ق) یوه میاشت پخوا راووت او د کندهار له لارې د حج په نیامت وووت چې دا به ئې نو دوهم وار راتګ وبولو. علامه سیدجمال الدین افغان په کندهار کې د حیتن سرای د استوګې پر مهال د دغه ښار له ځینو علماوو سره کتلي ول چې نومونه ئې د علامه په یادابښتو کې په ترتیب سره داسي راغلي دي:

– ملاعبدالحق حرقه:

د (حرقه) کلمه ځینو محققینو (خرقه) ګڼلې وه او ما (هوتک) هم په (درنه کورنۍ: ۳۲مخ) کې همداسي راوړې ده،

له ملا عبدالحق څخه د سیدجمال الدین افغان مراد د اروابښاد عبدالرؤف بېنوا نیکه ملاعبدالحق علیزی (استاذکل) دئ چې وفات ئې په ۱۲۸۸هـ ق کې په کندهار کې پېښ سوی دئ. مرحوم استاذکل چې د خپل پلار ملا ګلستان اخند تر وفات وروسته کندهار ښار ته راغی او د ملا احمد الکوزي شاګردي ئې شرو کړه، د خرقې شریفې په کوڅه کې اوسېدی. زما یقین دئ چې (حرقه) کلمه طباعتي غلطي ده، باید (خرقه) وای.

– ملامحمدصدیق:

علامه سید ئې د ملا عبدالحق شاګرد "تلمیذ" بولي. زموږ محققینو هم ملامحمدصدیق الکوزی د استاذکل ملا عبدالحق علیزي په شاګردانو کې بللی دئ[۲].

– قاضي غلام:

دا هغه مشهور قاضي غلام هوتک دئ چې د سردار کهندل خان په واکمني کې د کندهار قاضي القضات وو. د ده په نامه یوه کوڅه تر اوسه لا هم سته. ما په خپل اثر (سل بګړۍ یو پوړنۍ: ۱۳۱مخ) کې مفصلي خبري پر کښلي دي.

– ملاعبدالاحد:

د یاد سوي قاضي غلام هوتک زوی وو. د (ایقاظ النیام) په نامه ئې یوه عربي رساله د۱۲۵۰هـ ق په شاوخوا کې کښلې وه (وګ: د افغانستان ببنلیک؛ ۱۸۳مخ).

– صوفي بردراني:

مراد ئې د کندهار مشهور "مصلح ستانه" صوفي محمدرسول ساکزی دئ. صوفي صاحب په ۱۸۱۷ع کال د ساکزو په کوڅه کې زېږېدلی وو او د برو دروازې د یوسفزو په مسجد کې اوسېدی، ځکه نو علامه سید د (صوفي بردراني) په نامه یاد کړی دئ. د صوفي صاحب دغه ماجت اوس هم سته.

– ملاخواجه محمد:

ملا خواجه محمد بارکزی د صوفي صاحب شاګرد "تلمیذ" او د ملا عبدالباقي افغان استاد

---

[۲] (وګ: د ګیتا نجلي سریزه – د علامه رشاد په قلم).

وو. قبر ئې د صوفي صاحب علیه الرحمه د پښو خوا ته پروت دئ.

- ملا محمدرحیم ساکزی:

دا ملاصاحب هم د صوفي محمدرسول ساکزي رحمة الله علیه په شاگردانو کې وو.

- ملاعبدالرحیم:

مراد ئې د علامه حبیب الله کندهاري (حبواخندزاده) زوی عبدالرحیم اخندزاده شهید دئ. عبدالرحیم اخندزاده د غازي محمدایوب خان د پلویتوب په خاطر امیرعبدالرحمان خان په خپل لاس په خرقه شریفه کي په توره وواهه او شهید ئې کړ[3].

علامه سید په خپلو یادابنتو کي "ملا عبدالرحیم پسر ملاحبو" لیکلی دئ.

- ملاعبدالحق طل:

د "طل" کلمه گونگه راته ایسي. په غیاث اللغات کي ئې لغوي معنا د باران میده میده څاڅکي، شبنم کښلي ده. د (طال الله عمره = خدای دې عمر اوږد کړي) مخفف هم کېدلای سي. د کندهار د دغه عصر په علماوو کي درې عبدالحق نومي عالمان سته چي یو ئې استاذکل ملا عبدالحق علیزی دئ او مور په دې لیکنه کي پر رغېدلي یو. په دغه نامه بل عالم د یاقوت السیر مؤلف ملا عبدالحق خروټی وو. وفات ئې په ۱۲۸۲ هـ ق کي یا په بل عبارت کندهار ته د علامه سید تر راتگ یوکم دېرش کاله وروسته پېښ دئ. دریم ملاعبدالحق مشهور په ملاکته اخند هم د دغه عصر عالم دئ[4].

زه فکر کوم چي د علامه سید مراد به ملا عبدالحق خروټی وي (والله اعلم بالصواب).

- ملا محمدي:

دا ملا صاحب نه پېژنم.

- قاضي عبدالرحمن خان ملا:

قاضي عبدالرحمن د قاضي محمد سعید خان بارکزي زوی، د مولوي محمداسمعیل (ژړی نیکه) لمسی او د قاضي نصرالله خان کندهاري کړوسی وو. قاضي نصرالله په ارغسان کي اوسېدی او لوی احمدشاه بابا کندهار ښار ته راوغوښت او د قضا پر مقام ئې کښېناوه. د قضا مقام تر دا وروستیو زمانو پوري لا د دغي کورنۍ په واک کي وو. د علومیانو مشهوره علمي او سیاسي کورنۍ د قاضي نصرالله خان بارکزي اولاده ده. د دغي مشهوري کورنۍ په باب ښاغلي اعظم سیستاني په پاړسي ژبه یوه محققانه لیکنه کړې ده چي د (ذکر خیری از قاضی سعدالدین خان وخاندان "خان علوم" کندهاری) په نامه په درې قسطه کي په افغان جرمن آنلاین کي خپره سوې ده. محترم لوستونکي دې هورې ولولي.

- قاضي سعدالدین:

دی د قاضي عبدالرحمن خان ملا زوی وو.

- قاضي عبدالسلام:

دی د قاضي محمدسعیدخان بارکزي زوی او د قاضي عبدالرحمن خان ملا ورور وو.

کندهار ته د علامه سید جمال الدین افغان د راتگ پر وخت دغه تاریخي ښار د علماوو لوی ټاټوبی وو، خو:

آن قدح بشکست آن ســـاقی نماند
آنقدر می ریخت که هیچ باقی نماند

۱۹ مارچ ۲۰۱۴ع
آشاوا - کاناډا

[3] (وگ: د لیکونکي اثر، درنه کورنۍ: ۳۱ مخ).

[4] د کندهار مشاهیر نومي اثر کي د ملاکته اخندنوم غلام محی الدین بلل سوی دئ چي د تامل وړ خبره ده.



ليکوال: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

# د سومنات فتح

(دوهمه برخه)

بسم الله الرحمن الرحيم ـ د سومنات معبد لوی بت د مصارفو او عوايدو يوه ستره منبع او ذريعه وه. د هندوانو په نظر د سومنات بت روزي ورکوونکی، ژوند بخښونکی، ژوند ختمونکی، د هر څه اورېدونکی او ليدونکی... وو. ځکه ئې نو ډېر نازاوه، خپل ښه او ګران بيه شيان (لکه سره او سپين زر، جواهرت، الماس او نور) به ئې د نذرانې له پاره ورکول. دغه بت به هره ورځ د ګنګا د سيند په اوبو، شيدو او عسلو پرېولل کېدی.

کله چې سلطان محمود او پوځيان ئې د سومنات مندر ته ورننږدې سول، نو هندوان د کلا سر ته وختل چې ډېره جګه وه او په لوړو ږغو سره ئې په غزنوي لښکرو داسې ملنډې ووهلې: «سومنات مسلمانان د خپلې کلا دېوالو ته راوستل چې سخت ئې مغضوب او تباه کړي، او ستاسو څخه د ټولو هغو بتانو انتقام واخلي چې تاسو مخکی مات کړي دي». (چې مطلب ئې د تهانيسر، قنوج، کانګړه، کالنجر، ګواليار، کشمير، منصوره، ملتان او نورو ځايو لوی معبدونه او بتان ول).

سلطان محمود او جنرالان ئې نور هم وخښمېدل او د سومنات ورانولو ته تر پخوا هم جدي سول. د دې ملنډو او تمسخر څخه فقط څو ساعته وروسته د کلا د دېوالونو له پاسه او دننه په مندر کې د الله اکبر نارې واورېدل

سوې او هر څه فتح سول.

د دې اسلامي ضد شعارونو او لمسوَنو سروال (راجا پريم ديو سولنکي) وو. هغه يو بنسټ پال او خورا متعصب هندو راجا وو. ده به د سومنات د جنګ پر مهال هندوان جنګ ته هڅول او تيارول. خو د سومنات تر فتحې وروسته د مندر څخه ۳۳ کيلو متره ليرې د «کنديهه» کلا ته وتښتېد او هلته پټ سو. دا ځای د ګجرات د جوناګړ د ټاپووزمي په پای کې واقع وو چې درې خواوې ئې د سمندر اوبه وې او يوه خوا ئې په وچه پورې منښتې وه، مګر دلته هم لوی او پراخ سيند يو خنډ وو چې څوک نه سول ورګډېدای.

سلطان محمود ورپسې راغی خو شاوخوا ئې د اوبو پراخې څپې وليدلې نو حيران وو چې څه وکړي او څنګه دا کلا فتح کړي او راجا پريم ديو ونيسي يا ئې ووژني. بالاخره د ځو محلي کسانو د معلوماتو پر اساس په مناسب ځای او مناسب وخت کې په يو ګړندي خوځښت سره په اوبو ورګډ سول او ورپورې وتل او بې له کوم خاص مقاومته ئې کلا ونيوله.

راجا پريم ديو د سلطان او پوځيانو زړه ورتوب ته حيران سو، څو چې د ځايي هندوانو په مرسته ئې په بدلو جامو کې د عوامو په ډله کې ځان تېر کړ او په پټه وتښتېد.

بېلا بېل منابع د هندوانو تلفات بېلا بېل ښيي. ځيني وايي چې نيوي زره هندوان ووژل سول، ځيني وايي پنځوس زره، ځيني د څلوېښتو زرو او ځيني بيا د نهو زرو تلفاتو خبره کوي. خو د سلطان محمود د پوځيانو تلفات کومي منبع دقيقاً نه دي ذکر کړي.

لوی استاد علامه حبيبي د «عتبي» له قوله وايي چې سلطان محمود ډېر لوی پوځ تهيه او سرښته کړی وو چې د ترکو، افغانانو (مطلب ئې پښتانه)، تاجکو خلجيانو (يعني غلجي چې د اصطخری او ياقوت له قوله په خراسان او سيستان کې تر کابل پورې اوسېدل) او هندوانو څخه جوړ سوی وو. افغاني قومونه ئې په غور، د سليمان غره، سپين غره او نورو سيمو کې په اسلام هم مشرف کړي ول. پښتنو په ډېرو جنګونو منجمله سومنات کې د سلطان محمود په ننګه لويه توره وکړه.

مؤرخين وايي چې پښتنو د خپل خوريي يعني سلطان محمود غزنوي سره په ډېرو جنګونو او غزاوو کې ټينګه مرسته کړې ده. د سلطان محمود مور د زابل پښتنه وه چې ننني کندهار هم پکښې شامل وو. همدا علت دئ هغه ته زابلی محمود يا قندهاری محمود هم ويل کېږي.

د غزنوي عصر مؤرخ عتبي په «تاريخ يمني» کې وايي چې پښتانه د اجل په څير، يا د وږي زمري په ډول پر غليم ورتلل، پر کوتلونو ختل، لکه بر ښنا په ځنګلونو ننوتل، لکه هوسۍ پر غرونو ختل، لکه سېل پر غرونو راشيوه کېدل.

تاريخونه (منجمله تاريخ مرصع) وايي چې د سومنات په معرکه کې خو د پښتنو د منظمو پوځونو څخه علاوه ډېر پښتانه د غازيانو په ډول د جهاد په غرض د خپلو مشرانو (لکه ملک عارف، ملک داود، ملک يحيی، ملک غازي، ملک شاهو، ملک خانو، ملک عامون او ملک احمد) تر قوماندې لاندي جنګېدل.

روايت دئ چې يوه ورځ د سلطان مور د خپل زوی محمود څخه وپوښتل چې ولې پر له پسې پر هندوستان بريدونه کوې خو کوم خاص بری نه حاصلوې؟ سلطان خپلې مور ته وويل چې ته induced ووايه، څه وکړم؟ مور ئې محمود ته وويل چې د پښتنو پر مشرانو او سردارانو ږغ وکړه چې ستا ملاتړ وکړي. نو محمود هم

همداسي وکړه او د بېلګي په ډول د پښتنو
پورتني اته مشران او نور قوماندانان د خپلو ګڼ
شمېر ځوانانو سره د ده ملګري سول.

وايي چي د سومنات جګړه د مشقت او
تکليفونو په لحاظ د خپل نوعيت يوه بې مثاله
معرکه وه. په دې غزا کي د ترکو په نسبت
پښتنو ډېره ځوانمردي ښکاره کړې وه. لکه
چي د يو پښتون د دې شعر څخه ښه ترا
څرګندېږي چي حتماً په خپله هم په دې
جګړه کي برخمن وو:

ترکو نامردو داسي ودانګل له نام و ننګه
زه يو پښتون وم چي ولاړ وم د سلطان تر څنګه
توره په لاس کي په سره اور د عرصات وختم
له بت شکن سره په دڅ د سومنات وختم

د دغو پښتني ژوبله ورو او مشرانو څخه
يو هم (خالو خان) وو چي په لاندينۍ لنډۍ
کي له ګومله د دې جنرال د لښکرو راتګ
ښوول سوی دئ:

چي د خالو لښکري راسي
زه به ګومل ته د خپل يار ديدن له ځمه

د جنګي غنيمت په هکله هم د پورتنيو
تلفاتو غوندي ډول ډول انګېرني کېږي. ځيني
مأخذونه له افراط او ځيني له تفريط څخه کار
اخلي. مثلاً عبدالرحمن ابن جوزي وايي چي
سلطان دغه معبد ته وقف سوی ثروت چي د
شلو مليونو معادل سره زر، لعل او زمرد ول،
خپلي خزانې ته يووړل. خو البيروني بيا وايي
چي سلطان د معبد د غټ بت سر او د هغه د
غاړي طلايي د جواهراتو ډک امېل غزني ته
يووړل.

په هر صورت، سلطان محمود او لښکر
ئې د خپل مأموريت تر بشپړولو (يعني د
سومنات د فتحي څخه) وروسته څو ورځي په
سومنات کي تېري کړې او د برهمنانو او ډېرو
هندوانو سره ئې خبري اتري وکړې. سلطان
په عين حال کي استخباراتي چاري هم جداً
مدنظر لرلې. دا مهال راپور ورته راغی چي
تښتېدلي برهمنان او راجاګان د راجپوتانو په
شمول غواړي چي د سلطان مخه ونيسي او د
خپل شکست بدل ترې واخلي. نو هغه وو چي
سلطان هم د بيرته راستنېدو لوری بدل کړ.
دوه کسه داوطلب راجاګان حاضر سول چي
يوه نوې لار له نږدې ور وښيي. هغوی ورته
وويل چي موږ په دې ټوله سيمه کي ډېر بلد
يو. تاسو به دوه مياشتنۍ لاره په يوه مياشت
کي طی کړئ.

سلطان د خپلو جنرالانو سره تر مشورې
وروسته په هغوی باور وکړ. نو ځکه هغوی
دواړه ئې د سفر ملګري سول. يوه شپه او ورځ
چي ئې مزل وکړ نو داسي وچ او هوار ميدان ته
ورسېدل چي په ټوله سيمه کي يو ځاځکی
اوبه هم نه پيدا کېدې. د پوځيانو زخيره اوبه
ختمي سوې او ټول ډېر تږي ول. هغوی د اوبو
غوښتنه کوله. سلطان امر وکړ چي هغه دواړه
لاره ښوونکي راولئ. کله چي ئې حاضر کړل نو
سلطان ورڅخه وپوښتل چي ولي مو پر دغه
وچه او خطرناکه لاره راوستلو؟ هغوی ورته
وويل چي موږ اصلاً د سومنات فدايان يو او
غواړو چي تاسو د لوږي او تندي څخه همدلته
ووژنو. نو ځکه مو پر همدې اوږده او وچه لاره
راوستلاست. د دې اعتراف څخه وروسته
هغوی دواړه د خپل عمل په سزا ورسېدل.

سلطان وروسته خپلو پوځيانو ته وويل
چي نن شپه همدلته خيمې ووهئ او د الله
تعالی دربار ته زاری او دعاوي وکړئ. د ده په
شمول ټولو د الله جل جلاله په حضور کي
تضرع پيل کړه. وايي چي څه ګړی وروسته
نابېره د شمال له لوري يوه روڼا راښکاره سوه.
سلطان څو کسان هغې خوا ته ولېږل څو چي
دوه درې ميله ليري ئې يو سيند معلوم کړ او

ګرده پوځيان هلته ورغلل او په دې ډول الله سبحانه و تعالی له حتمي مرګه نجات ورکړ.

هغوی د راجپوتانه په دښتو کې د هندي راجاګانو او مغلوبو پوځيانو د سختو حملو سره مخامخ سول چې ډېر تلفات ئې وزغمل خو بيا ئې هم هغوی له مخې وشړل. د همدې نامردانه کمين او حملې د انتقام له پاره سلطان محمود يو کال وروسته بيا دې سيمې ته راغی او هغوی ئې سخت وځپل.

وايي چې د «تهر» په ارت او پراخ دښت کې يوه پخوانۍ هديره ده چې (آمري قبرستان) ئې بولي. دا د سلطان محمود د ډېرو پوځيانو وروستی کور دئ. د يو روايت له مخې د سومنات تر فتحې وروسته چې کله سلطان او پوځيان ئې مخ پر غزني روان وو، نو د سومنات برهمنانو او ګڼ شمېر هندو جنګياليو همدلته پر هغوی حمله وکړه. د ډېرې ستړيا، لوږې، تندې، ناروغيو او تبونو له امله د شاهي پوځ ډېر ځوانان مړه سول چې همدلته ئې ښخ کړل چې نن يوه لويه هديره ده.

په هر صورت، سلطان چې خپل لوری بدل کړ، وروسته د سند د رود پر اوږدو د کوچ ټاپو له لارې ملتان ته ورسېدل او پر لارې ئې د منصوره کلا هم فتح کړه. د لارې اوږدوالي، د پوځيانو ستړيا، د بې اوبو او بې وښو پراخو ډاګونو، د پوځيانو ناروغيو، جنګونو او زخمونو د دې فاتح لښکر ډېر وخت ضايع کړ خو چې بالاخره يو کال وروسته (۴۱۷ هجری يا ۱۰۲۶ ميلادي) غزني ته راورسېدل.

فرخي سيستاني چې د سلطان محمود د دربار يو مشهور او تکړه شاعر وو (او د ده له قوله د سومنات په مأموريت کې ورسره ملګری هم وو)، د سومنات تر فتحې وروسته د سلطان د رارسېدو په مناسبت ډېر ښه شعر ووايه چې د فارسي ادب يو شهکار بلل کېږي، يعني:

يمين دولت شاه زمانه با دل شاد
بفال نيک کنون سوی خانه روی نهاد
بتان شکسته و بتخانه ها فکنده زپای
حصارهای قوی برگشاده لاد ازلاد
هزار بتکده کنده قوی تر از هرمان
دويست شهر تهی کرده خوشتر از نوشاد
گذارده کرده بيابانهاي بي فرجام
سپه گذاشته از آبهای بي فرناد
گذشته با بنه زآنجا که مايه گيرد ابر
رسيده با سپه آنجا که ره نيابد باد
ز ملک و ملکت چندين امير يافته بهر
زگنج بتکدهٔ سومنات يافته داد
کنون دو چشم نهاده ست روز و شب گويي
به فتحنامهٔ خسرو خليفهٔ بغداد
خليفه گويد کامسال همچو هر سالی
گشاده باشد چندين حصار و آمده شاد
خبر ندارد کامسال شهريار جهان
بنای کفر فکنده ست و کنده از بنياد
بقاش باد که از تيغ او و بازوی اوست
بنای کفر خراب و بنای دين آباد
زبهر قوت دين با ولايت پرويز
هزار بار به تن رنجکشتر از فرهاد
زبسکه رنج سفر بر تن شريف نهد
همی ندانم کان تن تنست يا پولاد
برابر يکی از معجزات موسی بود
در آب دريا لشکر کشيدن شه راد
شه عجم را چون معجزه کرامتهاست
پديد گشت که آن از چه روی و از چه نهاد
من از کرامت او يک حديث ياد کنم
چنانکه بر دل تو ديرها بماند ياد
به سومنات شد امسال و سومنات بکند
در اين مراد بپيمود منزلی هشتاد

به ره ز دريا بگذشت و آب دريا را
چو آب جيحون بيقدر کرد و جسر گشاد

در آن زمان که ز دریای بیکران بگذشت
بسی میان بیابان بیکرانه فتاد
نه منزلی بود آنجا به منزلی معروف
نه رهبری بود آنجا به رهبری استاد
بماند خیره و اندیشه کرد و با خود گفت
کزین ره آید فردا بدین سپه بیداد
چنان نمود ملک را که ره ز دست چپست
برفت سوی چپ و گفت هر چه باداباد
در این تفکر مقدار یک دو میل براند
ز رفته باز پشیمان شد و فرو استاد
ز دست راست یکی روشن پدید آمد
چنانکه هر کس از آن روشنی نشانی داد
همه بیابان زان روشنایی آگه شد
چو جان آذر خرداد ز آذر خرداد
برفت بر دم آن روشنی و از پی آن
به جستجوی سواران جلد بفرستاد
به جهد و حیله در آن روشنی همی برسید
سوار جلد بر اسب جوان تازی زاد
ملک همی شد و آن روشنائی اندر پیش
که روز نو شد و درهای روشنی بگشاد
سرای پرده و جای سپه پدید آمد
دل سپاه شد از رنج تشنگی آزاد
کرامتی نبود بیش ازین و سلطان را
چنین کرامت باشد نه هفت، خود هفتاد
همه کرامت از ایزد همی رسید به وی
بدان زمان که کم از بیست ساله بود به زاد
مگو مگوی که چون کیقباد یا چو جم ست
حدیث او دگرست از حدیث جم و قباد
چو زو حدیث کنی از شهان حدیث مکن
خطا بود که تخلص کنی همای به خاد
همیشه تا نبود نسترن چون سیسنبر
چنانکه تا نبود شنبلید چون شمشاد

همیشه تا که گل آبگون ز لاله لعل
پدید باشد و خیری ز سوسن آزاد
یمین دولت محمود شهریار جهان
به شهریاری و رادی و خسروی بزیاد
سپهر با او پیوسته تازه روی و مطیع
چنانکه مادر دخترپرست با داماد
بهار تازه برو فرخجسته باد و بی او
زمانه را و جهان را بهار تازه مباد

په هر صورت ، پخوا به هر واکمن خپل مداحان لرل چي زیاتره به شاعران او لیکوالان ول. خو د سلطان محمود غزنوي دربار تر بل هر واکمن د دغسي اشخاصو څخه ډک وو. په دې لړ کي فرخي سیستاني، عنصري بلخي، ابونظر عسجدي او نور ډېر شهرت لري. د سلطان محمود د عصر تکړه لیکوالان او تاریخ پوهان عبدالحی گردیزي، البیروني، بیهقی، عتبي او نور دي. په خپله د فرخي شعرونه هم د تاریخي پیښو له بیانه ډک دي. دغو ټولو د سلطان محمود له خوا پر سومنات باندي حمله او د هغه فتح په جزئیاتو سره څېړلې او ستایلې ده.

د سلطان محمود له خوا پر سومنات باندي د حملې او د هغې د پایلو د څېړلو او شنلو په هکله درې طبقې مأخذونه ډېر اړین او مهم دي. لومړی ئې اسلامي آثار دي، دوهم ئې هندویي آثار دي او درېیم ئې برتانوي آثار دي چي په ترتیب سره به ئې وشنو.

## لومړی - د مسلمانانو آثار:

دغه مأخذونه د سومنات د حملې او نتیجې په هکله ټول یو نظر او یو روایت نه لري بلکي ځینو له افراطه او ځینو له تفریطه کار اخیستی دئ. ځیني ډېره مبالغه او ځیني ډېره بې توجهي کوي. خو د اړونده پېښې عام انعکاس او چوکاټ یې نسبتاً گډ او مشترک دئ. یوازي په جزئیاتو کي واحد نظر نه لري. له دغو څخه یو وایي چي بت شل منه

جواهرات لرل، بل وايي چي طلايي ځنځير ئې ۲۰۰۰ منه وو. بل وايي چي بت هماغه د کعبې شريفي څخه راتښتول سوی (منات) وو چي ګواکي څلور سوه کاله وروسته د سلطان محمود له خوا ټوټه ټوټه سو. بل اثر بيا وايي چي د هغه دوه لاسونه دننه په مځکه کي او پنځه ئې د مځکي څخه دباندي وو. بل اثر بيا وايي چي هغه په هوا کي معلق وو چي د څو خواوو څخه مقناطيسو په هوا کي متوازن او معلق ساتلی وو (يعني فلزي بت وو). خو بل اثر وايي چي دا د ډبري بت وو، بل وايي چي د چندڼ (صندل) لرګی وو. يو اثر ئې دېرش زره کلن لرغونی بولي، بل ئې ۱۰۰۰ کلن او بل ئې بيا څو سوه کلن بولي. ځيني وايي چي دا انسان وزمه بت وو، ځيني وايي چي هغه تناسلي آله وه، ځيني بيا وايي چي يوه توره ساده ډبره وه. ځکه نو تر ننه ثابته نه ده چي هغه مؤنث منات و که مذکر شيوا؟!

د دغو مأخذونو څخه څو مهم ئې دا دي:
د ابن اثير (الکامل فی التاريخ)، د قزويني اثر (آثارالبلاد و اخبارالعباد)، د دمشقي اثر (نخبة الدهر فی عجايب البر والبحر)، د فرخي سيستاني شعرونه (ديوان)، د محمد قاسم هندوشاه (تاريخ فرشته)، د ضيأالدين برني اثر (فتاوی جهانداري)، د اسامي اثر (فتوح السلاطين)، د افضل خان ختک اثر (تاريخ مرصع)، د عتبي اثر (تاريخ يمني)، د البيروني اثر (الهند)، د بيهقي اثر (تاريخ بيهقي)، د ګرديزي اثر (زين الاخبار)، د ابن خلدون اثر (مقدمهٔ تاريخ)، د عبدالرحمن ابن جوزي اثر (المنتظم فی تاريخ الامم والملوک)، د منهاج سراج اثر (طبقات ناصري) او نور.

په دغو کي څو آثار ما په خپله لوستلي دي او د څو نورو اقتباسات مي ليدلي او ليکلي دي. نو ځکه د سومنات د معبد، د هغه د بت او ثروت مسأله مهمه خو مبهمه ده. د دې هر څه سره سره دا ټول آثار څو مشترک ټکي لري چي هغه دا دي:

لومړی: پر سومنات د سلطان محمود بريد صرف اسلامي جذبه او صبغه لرله، نه مادي يا مالي. دغه بريد او عمل ئې د بشپړ ستايني او منني وړ دئ.

دوهم: سلطان محمود يوازي د هندو معبدونو او بتانو دښمن نه وو، بلکي د اسلام په دين کي د بدعتيانو هم د سر دښمن وو.

دريم: سلطان محمود د سومنات عادي هندوان لوټ نه کړل، نه ئې ووژل او نه ئې ظلم پر وکړ، بلکي صرف او صرف مندر او د هغه بت ئې وران کړ او د هغه جنګي مدافعين ئې ووژل. يوازي ئې د معبد او بت ثروت د غنيمت په توګه مصادره کړ.

څلورم: د بت تر ماتولو وروسته ئې د هغه څو ټوټې له ځان سره غزني ته راوړې او په دوو درو ځايو کي ئې نصب کړې.

پنځم: سلطان محمود دا هر څه د استخارې او مشورې له مخي کول، نه په ځاني او شخصي توګه.

مګر که د پخوانيو اسلامي آثارو څخه تېر سو (چي ټولو دا يرغل ستايلی او منلی دئ) او معاصر ايراني آثار ولولو، نو بدبختانه وبه وينو چي هغوی تقريباً ټولو پر سومنات د محمود غزنوي حمله غندلې او ترټلې ده. هغوی د سلطان محمود هر عمل منجمله همدا اقدام په شدت سره محکوموي. هغوی هر څه د مذهبي تعصب په ککړو عينکو کي ويني. هر پوهاند او څېړاند ئې په دې هکله د نفاق او شقاق څخه کار اخلي او وايي چي سلطان محمود غزنوي په زرګونو اسماعليان او شيعه ګان ربړولي او وژلي دي، خو اسناد نه وړاندي

کوي. هغوی ادعا کوي چې سلطان محمود یو سخت دریځه سُني متعصب انسان وو چې د هندوانو او اسماعلیانو توپیر ئې نه کاوه. د دغسي ایرانیانو ټول آثار د محمود غزنوي پر خلاف یا پر ضد دي او ادعا کوي چې محمود غزنوي هند ته بالاعم او سومنات ته بالاخص د چور او چپاول له پاره تی، نه د اسلام د تکوین او تعمیم له پاره.

د دغو متعصبو او تنګ نظره ایراني لیکوالو ځینی آثار تور لګوي چې محمود د خپل مریي (ایاز) سره جنسی اړیکی لاره او ګواکی لواطت ئې ورسره کاوه. بعضي منابع محمود یو شراب څښونکی (یعنی شرابي) معرفي کوي. ځیني منابع محمود د ښکلو نجونو، ساز او آواز، نڅا او عیاشۍ د محفلونو یو واکمن بولي. خو دا ټول تهمتونه مطلق درواغ او بې اساسه دي.

د مثال په توګه، دغسي ایراني آثار او لیکني د سلطان محمود له خوا پر مندرونو (خصوصاً سومنات) باندي د حملو او غنیمتونو په هکله داسي کلمات استعمالوي: «تاراج نمود»، «به یغما برد»، «چپاول نمود»، «به غنایم و ثروت های فراوان دست یازید»، «ثروت بسیاری نصیب شد»، «این همه ثروت به خزانهٔ خود برد»، «دارایی های شان به غنیمت ستاندند»، «به تاراج برد»...

خو په یوه اثر کي هم د پورتنیو غندنو او تهمتونو په باره کي هیڅ کوم سند او مأخذ نه ذکر کوي بلکي یوازي د تخیل او تجاهل څخه کار اخلي او بس. آیا داسي یو واکمن چې کلک مسلمان او متقي انسان وي؛ مندرونه او بتان ماتوي؛ دا ممکنه ده چي هغه به شراب، عیاشي، لواطت، زنا او نور کبیره ګناهونه کوي؟ آیا په دې باره کي مؤثق او معتبر اسناد وجود لري؟ دا به ډېره بې انصافي، ظلم او غلطي وي چې د یوولسمی پېړۍ پېښې، پرمختیاوي او اقدامات (زر کاله وروسته) د یوویشتمی پېړۍ په ترازو کي وتلل سي. فاعتبروا یا اولی الابصار!

## اړونده مأخذونه:


۱. تاریخ کامل؛ عزالدین ابن اثیر؛ برگردان: حمید رضا آژیر، جلد سیزدهم، چاپ اول (انتشارات اساطیر)، تهران، ۱۳۸۵ شمسی.
۲. تاریخ مختصر افغانستان؛ مرحوم عبدالحی حبیبی، چاپ سوم، دانش کتابخانه، پشاور، ۱۳۷۷ ش.
۳. فاتح، جنگهای سلطان محمود غزنوی با هند و فتح سومنات؛ شاپور آرین نژاد، چاپ سوم، تهران، ۱۳۸۶ ش.
۴. تاریخ ابن خلدون (شپږم جلد)؛ علامه عبدالرحمن ابن خلدون؛ اردو ژباړه: حکیم احمد حسین اله آبادي، نفیس اکیډمي، کراچی، ۲۰۰۳.
۵. د هندوستان د کمبریج تاریخ؛ دریم جلد؛ سر ولزلي هېګ، کیمبرج، انګلستان، ۱۹۲۸.
٦. سومنات، د یو تاریخ ډېر ږوتونه؛ پروفیسوره رومیلا تاپر، نوی ډیلي، ۲۰۰۴.
۷. سومنات؛ سید محمود رضا عالمی (مجلهٔ سخن تاریخ)، شمارهٔ هفتم، ۱۳۸۸، ایران.


نور بیا ...

***



لیکوال: مطیع الله روهیال

# اکبرنامه

## د متن څېړني په بهیر کې د علامه حبیبي لومړی هڅه

لوی استاد علامه حبیبي یو له هغو پوهانو او عالمانو څخه دئ، چې په افغانستان کې ئې د تخلیقي او تحقیقي ادبیاتو په عرصه خورا ډېر ویاړونه له نامه سره تړلي دي. په دغو ویاړونو کې یو هم د انتقادي او تحقیقي متونو تهیه کول او برابرول دي. د لوی استاد له خوا ټول چاپ سوي متون پر علمي او اصولي موازینو برابر خېژي. د تحقیقي متونو د برابرولو په برخه کې لوی استاد ټول زاړه روشونه پرې ایښي او د نویو انتقادي اصولو او روشونو څخه په ګټه اخیستنه ئې خورا ډېر علمي او انتقادي متون خپاره کړي دي. د استاد په لاس تهیه سوي متون نه یوازي دا چې د کمیت په حساب تر نورو زیات دي، بل لا د دغو متونو کیفیت تر کمیت ډېر مهم دئ.

علامه حبیبي د خپل فرهنګي ژوند په اوږدو کې تر شلو زیات پښتو او دري متون تهیه کړي او چاپ کړي دي. د دغو چاپي متونو تر څنګ ئې نور متنونه هم تهیه کړي دي چې لا تر اوسه چاپ سوي نه دي. په دغو متنونو کې یو هم د حمید کشمیري د اکبر نامې متن دئ، دوهم هغه ئې د نثاري بخاري د (مذکر

احباب) متن دئ، چې د دوی په لاس تصحیح او مقابله سوی دئ. حواشي او تعلیقات ئې پر لیکلي دي خو تر اوسه چاپ سوی نه دئ. زه به په دې کوچنۍ لیکنه کې د علامه حبیبي په لاس لومړی تهیه سوی متن چې د حمید کشمیري اکبرنامه ده لړ و ډېر دروپېژنم.

د ۱۳۹۱ش کال په دوبي کې د ځینو کارونو له پاره کابل ته ولاړم. کله چې به مې د ورځې په جریان کې خپل کارونه خلاص کړل، اضافه وخت به مې د افغانستان د علومو اکاډیمۍ په کتابتون کې تېراوه. د دغو ورځو په جریان کې مې یوه ورځ د کتابتون خطي ځانګي ته هم سر ورایسته کړ. د ځینو خطي کتابونو تر اړولو را اړولو وروسته د اکبرنامې پر هغه متن پېښې سوم چې د لوی استاد علامه حبیبي په لاس تهیه سوی وو. متن مې وکوت، یادابنتونه مې ځني واخیستل. د دغو یادابنتونو په ذریعه غواړم پر نوموړي متن باندي دغه لیکنه سربنته کړم، دا متن نه یوازي دا چې د علامه حبیبي په لاس تهیه سوی دئ، بل لا هغه مرحوم ټول متن په خپل قلم رانقل کړی هم دئ.

د اکبرنامې دغه متن د علامه حبیبي په ناچاپو آثارو کي راځي، چې تر ننه پوري د چاپ انتظار باسي. متن د دوو بېلابېلو خطي نسخو له مخي برابر سوی دئ. دواړي خطي نسخې په ډېر لنډ ډول معرفي سوي دي. پر متن باندي په ځلورو لویو مخونو کي یوه سریزه لیکل سوې ده. د سریزي په پای کي "اول جدی ۱۳۰۸ش" نېټه لیکل سوې ده. تر دغي ځلور مخیزي سریزي وروسته اصل متن پیلېږي. متن په پای کي یوه کوچنۍ خاتمه لري. د خاتمې آخر ته لیکل سوي دي: "ناقل و محرر: عبدالحی قندهاری کاکری معاون ادارهٔ طلوع افغان، ۹ جمادی الاول ۱۳۴۸".

په سریزه کي د هغه وخت د امپراتوریو پر استعماري او استثماري پالیسیو، د هغوی پر چمونو او فریبونو او په مجموع کي د دې سیمې په باب د انګریزانو پر چال چلن مفصلي خبري سوي دي. د دې تر څنګ د روسیې او فرانسې د حکومتونو له ځینو رازونو څخه هم پرده پورته سوې ده. د افغان – انګریز په دغه لومړي جنګ کي د وطن د ساتني او خپلو خلکو د پالني په باب د وزیر محمداکبر خان د بهادرۍ او ایثار په باب یادوني راغلي دي. په آخر کي د کتاب پر اهمیت او هم ئې پر ناظم باندي لنډې خبري سوي دي.

له هغو دوو نسخو څخه چې علامه حبیبي خپل انتقادي متن ځني برابر کړی دئ لومړۍ نسخه ئې د ۱۲۸۹هـ ق کال د صفري په میاشت کي استنساخ سوې ده. دوهمه هغه ئې د ۱۲۷۱ د جمادي الثاني پر ځورلسمه د جمعې په ورځ د محمدعمر ولد میرزا عبدالرزاق په قلم لیکل سوې ده.

په دې اړه لوی استاد خپله داسي لیکي:

"از نسخهٔ که در شهر صفر ۱۲۸۹هـ نوشته شده منقول و پس از آن با نسخه که روز جمعه جمادی الثانی ۱۲۷۱هـ بخط محمدعمر ولد میرزا عبدالرزاق نوشته شده تطبیق و مقابله شد".

د دوهمي نسخې اضافات او د عباراتو تغیر د متن په حواشیو کي پر اضافه سوي دي. په دې باب د علامه صاحب خپل قول داسي دئ: "زواید یا تغیر عباراتیکه نسخهٔ آخرین داشت همه در حاشیهٔ این کتاب ثبت و تحریر شد".

دا متن هغه مهال تهیه سوی دئ، چې د کندهار ښار د یوې میاشتي په اوږدو کي د سقاوي اړودوړ څخه د خلاصېدو په موخه د اعلیحضرت محمدنادر خان د پلویانو له خوا

محصور ساتل سوی وو. د کندهار ښار د نیولو په دوهمه ورځ علامه مرحوم د دغه متن د تهیه کېدو څخه فارغه سوی دئ. په دې باب لوی استاد خپله داسي لیکي:

"روز یکشنبه ۹ جمادی الاول ۱۳۴۸ق روز دوم فتح قندهار بدست قوای ملی، از تحریر این کتاب (مجموعهٔ تذکار غیرت و حمیت ملت افغان) فراغ دست داد، و اکثر آن در ایام محاصرهٔ شهر قندهار نوشته شد".

تر کومه ځایه چي زموږ په مطبوعاتو کي زه د علامه حبیبي د ناچاپو آثارو په فهرست کي د اکبر نامې پر نامه پېښ سوی یم، د دغه متن د تهیه کېدو او برابرېدو کال ۱۳۰۹ش لیکل سوی دئ. خو په پورته اقتباس کي په واضح ډول لیکل سوي دي چي علامه صاحب د دغه متن د تهیه کېدو څخه د ۱۳۴۸هـ ق کال د جمادي الاول پر نهمه د یکشنبې په ورځ فارغه سوی دئ. دغه تاریخ د ۱۳۰۸ش کال د مېزان د ۲۱مي نېټې سره برابرېږي.

د علامه حبیبي په لاس تر تهیه سوي متن ۳۲ کاله وروسته د انجمن تاریخ له خوا د اکبر نامې متن چاپ سو. خو د علامه حبیبي په لاس تهیه سوی متن بیا هم ناچاپه پاته سو.

د آریانا مجلې د اتویشتم کال (۱۳۴۸ش) په لومړۍ ګڼه کي د صابر آفاقي کشمیري په قلم د "حمید کشمیري یا فردوسی کشمیر" تر عنوان لاندي یوه مقاله خپره سوېده. په دې مقاله کي د حمید کشمیري پر آثارو او د ده پر شاعري باندي خورا مفصله څېړنه سوېده. د دغي مقالې په پای کي د "تکملهٔ مقاله" تر سرلیک لاندي علامه حبیبي یو یومخیزه تکمله خپره کړېده. په دې تکمله کي ئې د خپل تهیه سوي متن په باب ځیني یاداښتونه لیکلي دي.

هغه دوې نسخې چي علامه مرحوم د اکبر نامې متن ځني تهیه کړی دئ، لومړۍ ئې د هغه مهال د طلوع افغان په مدیر ارواښاد بابا عبدالعزیز الکوزي اړه درلوده، دوهمه ئې د کندهار د مشهور کتاب فروش ملا جان محمد وه. په دې باب د علامه صاحب خپل یاداښت داسي دئ:

"در سنه ۱۳۰۸ش هنگامیکه اغتشاش داخلی در مملکت موجود بود، و حصار شهر قندهار مدت یکماه محاصره شد، و من هم در آنجا بودم، دو نسخه خطی اکبر نامه داشتم که یکی در ملک مرحوم عبدالعزیز خان مدیر طلوع افغان و دوم آن از مرحوم ملا جان محمد کتاب فروش قندهار بود[1]".

علامه صاحب د اکبر نامې دغه انتقادي متن د یوې میاشتي په اوږدو کي برابر کړی دئ. د دې تر څنګ ئې د هغوی دواړو څخه یو واحد متن په خپل قلم تهیه کړی دئ. پر متن ځیني تصویرونه او نقشې هم د علامه صاحب له خوا اضافه سوي دي. دلته ئې دا ذکر هم کړی دئ:

"من در ایام غتشاش و محاصرهٔ این دو نسخه را با هم مقابله کرده و یک نسخهٔ را بخط خود نوشتم. که در متن نسخهٔ اول بوده و در حواشی آن اختلاف نسخهٔ دوم را قرار دادم. و برآن مقدمه و برخی تصاویر و نقشه ها را هم افزودم".

وروسته زیاتوي چي د دوی په لاس تهیه سوی متن اوس د انجمن تاریخ په کتابخانه کي محفوظ دئ:

"... و این نسخهٔ خطی اکنون در کتابخانهٔ انجمن تاریخ محفوظست[2]".

---

[1] وګ: د آریانا مجلې د ۱۳۴۸ش کال لومړۍ ګڼه، ۱۳ مخ.

[2] پورته ماخذ.

د دغې تکملې په آخر کې ئې پر دې افسوس کړی دئ، چې د دوی په قلم لیکل سوي یاداښتونه فقط څلوېښت کاله وروسته چاپ سوه. د دې تر څنګ ئې پر دې خبره هم تاسف ښکاره کړی دئ، چې د دوی په لاس د تهیه سوي جامع متن څخه استفاده نه ده سوې او په ضمن کې ئې دا خبره هم یاده کړې ده، چې چاپ سوی متن د نویو انتقادي روشونو سره برابر نه دئ تهیه سوی وی. د لوی استاد خپل یادښت داسې دئ:

"این بود یاداشتهای من در آخر کتاب که بعد از ۴۰ سال طبع شد و افسوس است که در حین طبع کتاب ازین متن جامع استفاده نشد و آنرا بدون در نظر داشتن رویهٔ انتقادی جدید و تکمیل آن از روی نسخ متعدد خطی چاپ کرده اند[۳]".

په آخر کې دا یادونه ضروري بولم، چې: د اکبرنامې انتقادي متن د متن څېړني په بهیر کې د علامه صاحب لومړی هڅه ده. چې د دوو خطي نسخو له مخې ئې برابر کړی دئ. سریزه ئې پر لیکلې او د متن په آخر کې ئې یوه کوچنې خاتمه هم پر لیکلې ده. د دې تر څنګ ئې د متن سره ځیني تصویرونه او نقشې هم مل کړي دي. د دواړو نسخو څخه ئې یو واحد متن په خپل قلم استنساخ کړی دئ او د دوی په لاس لیکل سوی متن اوس مهال د علومو اکاډیمۍ په خطي ځانګه کې خوندي دئ.

په دې امید چې یو وخت به د لوی استاد علامه حبیبي په لاس لومړی تهیه سوی متن د چاپ په ګڼه سمبال سي.

۴ حمل ۱۳۹۳ش

***

لیکوال: جبران خلیل جبران

مترجم: احمدالله ځرګند

## په دار سوی

په چیغو چیغو مې خلکو ته وویل: "غواړم چې په دار سم!"

دوی وویل: "خون دې ولې زموږ پرغاړه اچوې؟"

جواب مې ورکړ: "که لېوني په دار نه سي نو ستاسې سر به څوک لوړوي؟"

دوی کتل او زه په دار سوم. دغه دار سکون راکړ.

زه چې د مځکې او اسمان تر منځ ځوړند وم، دوی سرونه راپورته کړل چې ما ووینې. دوی سرلوړي سول، ځکه چې د دوی سرونه تر اوسه نه وه لوړ سوي.

دوی چې کله زما په ننداره ولاړ ول، یو چا ږغ وکړ: "څه جبرانول غواړې؟"

یو بل ناره کړه: "د څه له پاره دې ځان په دار کړ؟"

دریم وویل: "ستا په خیال د دې په عوض کې به نړۍ وال شهرت تر لاسه کړې؟"

بیا څلرم وویل: "وګورئ، څنګه موسکی دئ! ایا دغه درد دې راباندې پېرزو وو؟"

ما ټولو ته په جواب کې وویل: "یوازې زما موسکا په یاد ولرئ. زه هیڅ جبرانول او قربانول نه غواړم، نه د شهرت په تمه یم؛ او د لور ببنی له پاره هم څه نه لرم. زه تږی وم– او تاسې ته مې وویل چې زما وینه ما ته راکړئ چې وئې څښم. ایا داسې بدیل سته چې د یو لېوني سرې تنده د هغه له وینو پرته په بل څه ماته کړي؟ زه ګونګی وم– او ستاسې څخه مې د ژبې پر ځای زخمونه وغوښتل. زه ستاسې په ورځو او شپو کې بندیوان وم– ما د غټو ورځو او شپو په لټه په وره پسې کتل.

او زه دغه یم ورځم، د هغو په څېر چې پخوا په دار سوي او تللي دي. دا فکر و نه کړئ چې موږ له مصلوبېدو ستړي کېږو، ځکه چې موږ باید د خلکو له خوا ډېر– ډېر په دار او د مځکې او اسمانونو تر منځ را وځړېږو".

---

[۳] پورته ماخذ.

د لوی استاد د دېرشم تلین په یاد:

د عاصي په قلم

## په آریانا مجله کې

# د علامه حبیبي خپرې سوې مقالې

لوی استاد علامه حبیبي (۱۳٦۳ش مړ) له هغو افغاني پوهانو څخه وو، چې تر افغانستان دباندې ئې په ایران، هندوستان، پاکستان او د سیمې په نورو مملکتونو کې هم د پوهې او علمیت ازانګې خپرې وې. دغه شهرت او علمي تبحر د هغه خلاق استعداد زېږنده وو، چې خدای پاک پر علامه حبیبي پېرزو کړی وو. علامه مرحوم نه یوازې د یوه لوی عالم او محقق په توګه د افغانستان تاریخ او فرهنګ ته نه هېرېدونکي کارونه وکړل، بلکې د هغوی علمیت او پوهې د سیمې د رجالو او اماکنو په روښانه کولو او څېړلو کې هم لویه ونډه لرله.

د دوی دغه ډول تحقیقات او تتبعات د کتابونو او رسالو په شکل تر ۱۳۰ ټوکو تجاوز کوي. د دې تر څنګ ئې د زرو په شاوخوا کې داسې نوي تحقیقات او تخلیقات د مقالو په شکل وړاندې کړل، چې تر دوی مخکې یا خو کار نه وو پر سوی او که سوی هم وو په نیمګړې شکل. د دوی مقالې نه یوازې دا چې د کمیت په لحاظ خورا ډېرې دي بلکې کیفیت ئې تر کمیت ډېر د ارزښت وړ دئ. د دوی په مقالو کې خورا ډېرې داسې مقالې موجودې دي، چې د مقالو تر حوصلې وتلې بل لا د رسالو په شکل دي.

علامه مرحوم پر پښتو او پارسي سربېره په اردو او عربي هم مقالې لیکلې او د همسایه هیوادونو په موقوتو خپرونو کې خپرې کړې دي. تر افغانستان دباندې د دوی د مقالو زیاته برخه د ایران په یغما، سخن، دانش، هنر و مردم او رهنمای کتاب مجلو کې او د پاکستان په سروش، لار او پښتو مجلو کې خپرې سوې دي. اردو هغه ئې په ... مجله کې خپرې سوې دي. د افغانستان په تقریباً ټولو مجلو او خورا ډېرو اخبارونو کې د علامه مرحوم پښتو او دري مقالې خپرې سویدي. د مجلو په قطار کې د کابل، آریانا، ژوندون، کندهار، پښتون ږغ، هرات، هرات باستان، کتاب، خراسان، مېرمن، وږمه، ادب، جغرافیا، هنر، لمر، تحقیقات کوشانی، عرفان، او داسې نورو مجلو او د ورځپاڼو په لیکه کې په طلوع افغان، انیس، هیواد، اصلاح، افغان، مساوات، زېرې، اتحاد مشرقي، اتفاق اسلام، هلمند او داسې نورو ورځپاڼو او اخبارونو کې خپرې سوې دي.

لوی استاد د خپل مثمر ژوند په اوږدو کې د افغانستان د تاریخ او فرهنګ پر بېلابېلو اړخونو د زرو په شاوخوا کې مقالې لیکلې دي. د دغو مقالو خورا لویه برخه په کابل، آریانا او

ورمه مجله کې خپرې سوي دي.
سږکال (۱۳۹۳ش) د لوی استاد د مړینې دېرش کاله پوره سول. زه به د هغوی د دېرشم تلین د درناوي په سبب د هغه مرحوم د هغو مقالو فهرست د کندهار مجلې لوستونکو ته وړاندي کم، چي په آريانا مجله کې خپرې سوي دي. خو وعده به مي دا وي چي، د کندهار مجلې په راتلونکو ګڼو کي به د علامه مرحوم هغه مقالې چي په نورو مجلو کې خپرې سوي وي هم فهرست واره درنو لوستونکو ته وړاندي کم:
آريانا مجله د ۱۳۲۱ش کال د دلو په مياشت کي د افغانستان د تاريخ ټولني له خوا خپره سوه. دې مجلې د افغانستان د تاريخ په باب خورا په زړه پوري تحقيقات او تتبعات په خپلو پاڼو کي خوندي کړي دي. په دې مجله کي ټول خپاره سوي موضوعات د افغانستان تاريخ ته ځانګړي سوي دي. يا په بله ژبه ويلای سو، چي په اريانا مجله کي د افغانستان د تاريخ خورا لويه برخه خوندي ده. آريانا مجله نه يوازي دا چي د افغانستان تاريخ ته ځانګړې سوې وه، بلکي د سيمي د نامتو رجالو او تاريخي نقاطو د شنني او پلټني له پاره ئې هم غېږه پرانيستې وه. د پاکستان، اېران او هندوستان د مشهورو ليکوالو او پوهانو تحقيقات او تخليقات هم پکښې خپاره سوي دي. د دې مجلې شهرت په سيمه کي خپور وو. ايران په خپلو ډېرو سايټونو کي د دې مجلې کلکسيونونه په پي ډي ايف شکل خوندي کړي دي، د علم او فرهنګ پالني په ساحه کي د هغوی دغه کار د ډېري ستايني وړ دئ.
آريانا مجله لومړی وار هره مياشت خپرېده، خو په ۴۵ -۱۳۴۶ ش کال کي دوې مياشتنۍ سوه. د مجلې تر دېرشم (۵۰ - ۱۳۵۱) نشراتي کال پوري په هرو دوو مياشتو کي يو ځل خپره سوې ده خو د جمهوريت د راتلو سره سم دا مجله درې مياشتنۍ سوه. دا مجله اوس هم د افغانستان د علومو اکاډيمۍ له خوا خپرېږي، خو د کيفيت په لحاظ اوسنۍ د پخوانۍ په پرتله ځمکه وآسمان توپير لري.
په آريانا مجله کي د لوی استاد علامه حبيبي تر ۱۴۰ زياتي مقالې خپرې سوي دي. لومړۍ مقاله ئې د "نکات چند در تاريخ و زبان کشور ما" تر عنوان لاندي د لومړي کال په لومړۍ ګڼه کي خپره سوې ده. وروستۍ هغه ئې د څلوېښتم (۱۳۶۱ش) نشراتي کال په دريمه او څلرمه ګڼه کي د "عياران يا اخيان" تر سرليک لاندي چاپ سوې ده.
په آريانا مجله کي د علامه حبيبي د مقالو تر څنګ د هغه مرحوم ځيني کتابونه هم په قسط واره ډول خپاره سوي دي. لکه: رهنمای تاريخ افغانستان. بل کتاب ئې "سهم افغانستان در انتقال فرهنګ آسيای ميانه" نومېږي چي د آريانا مجلې د ۱۳۴۰ش کال په پرله پسې ګڼو کي خپور سوی دئ (د مجلې په اړونده ګڼو کي دغه مضمون ته د علامه حبيبي نوم نه دئ ليکل سوی، کله چي په ۱۳۸۱ش کال کي دغه اثر په کتابي شکل خپور سو، هلته هم د دې يادونه سوې نه ده چي دا کتاب لومړی وار په آريانا مجله کي سلسله واره خپور دئ). د دې تر څنګ د علامه مرحوم دوه نور کتابونه لومړی (يک تحقيق نوين در بارهٔ کابل شاهان) او دوهم ئې (هفت کتيبه) نومېږي چي لومړی وار په آريانا مجله کي خپاره سوي دي، وروسته ئې لومړی کتاب په ايران کي او دوهم هغه ئې د افغانستان د تاريخ ټولني له خوا په مستقل ډول چاپ سو.
دلته به د علامه مرحوم د خپرو سوو مقالو فهرست د آريانا مجلې د کلونو په ترتيب وړاندي کم. په دې سره به نه يوازي

لوستونکي وکولای سي، چي د هغه مرحوم مقالې په مجله کي په آساني سره ومومي، بل به لا د مجلې په نشراتي تسلسل کي هم مشکل پېښ سوی نه وي. د مقالې تر عنوان وروسته په قوسینو کي لومړی عدد د هغه کال ګڼه او تر هغه وروسته عدد د مجلې پرله پسې ګڼه ښيي.

**اول کال** (۲۱-۱۳۲۲ش)

۱. نکات چند در تاریخ و زبان کشور ما (۱/۱).

۲. پټه خزانه (گنج پنهان) - په دوو برخو کي (۷-۸/۷-۸).

**دوهم کال** (۲۲-۱۳۲۳ش)

۳. زرنج (۱۷/۵).

**دریم کال** (۲۳-۱۳۲۴ش)

۴. یک نسخهٔ قدیم تفسیر قرآن عظیم (۳۰/۶).

۵. واره (۳۱/۷).

٦. تصحیح کنید (۳۱/۷)

۷. مخزن الانشاء (۳۲/۸).

۸. خمار کجا بود؟ (۳۳/۹).

۹. دو ماخذ خطی در شرح حال واصفی هروی (۳۴/۱۰).

۱۰. از نسخه‌های خطی افغانستان (۳۵/۱۱).

۱۱. تاریخ مجدول و مؤلف آن (۳٦/۱۲).

**څلرم کال** (۲۴-۱۳۲۵ش)

۱۲. روش تاریخ نگاری دو نفر مؤرخ (۳/ ۳۹).

۱۳. بیرون والبیرونی (۴/ ۴۰).

۱۴. جای وفات سبکتگین (۵/ ۴۱).

۱۵. میر معصوم نامی (٦/ ۴۲).

۱٦. توابع کابل در عصر گورگانیان هند (۴۳/۷)

**پنځم کال** (۲۵-۱۳۲٦ش)

۱۷. تگین آباد کجا بود؟ (٦/ ۵۴).

۱۸. مناطق جنوبی غور (۷/ ۵۵).

۱۹. جوانمردان و عیاران - په دوو برخو کي (۹-۱۰/ ۵۷-۵۸).

۲۰. ربیعی پوشنگی شاعر آل دربار کرت (۱۲/ ٦۰).

**شپږم کال** (۲٦-۱۳۲۷ش)

۲۱. کابل و زابل (۱/ ٦۱).

۲۲. تحفة الحبیب (۵/ ٦۵).

۲۳. حیرت و حسرت (۵/ ٦۵).

۲۴. وصیت نامه ملک غیاث الدین کرت (٦٦/٦).

۲۵. آداب الحرب والشجاعه (۷/ ٦۷).

۲٦. تعدیل در نسب نامه آل کرت (٦۸/۸).

۲۷. یادآوریهای ادبی (۱۰/ ۷۰).

۲۸. چگونه علماء را قدردانی میکردند (۷۱/۱۱).

**اووم کال** (۲۷-۱۳۲۸ش)

۲۹. حکیم یوسفی هروی طبیب و منشی دربار بابر ... (۷۵/۳).

۳۰. پاسخ دوستانه (۷٦/۴).

۳۱. شیخ محمداکرم افغانی (۷/ ۷۹).

۳۲. نهضت ازادی خواهان افغان - په درو برخو کي (۹، ۱۱، ۱۲/ ۸۱، ۸۳، ۸۴).

۳۳. تخریب بست (۱۰/ ۸۲).

**اتم کال** (۲۸-۱۳۲۹ش)

۳۴. ترجمان البلاغه - په دوو برخو کي (۲-۳/۸٦-۸۷).

۳۵. زمزمه (۵/ ۸۹).

۳٦. مواضعه احمد میمندی با سلطان مسعود غزنه (۹۲/۸).
۳۷. نویسنده دبستان مذاهب کیست؟ (۹۳/۹).
۳۸. دو شخص عجیب در کابل (۹۴/۱۰).
۳۹. فصلی از کتاب فضایل بلخ (۹٦/۱۲).

**نهم کال** (۲۹-۱۳۳۰ش)

۴۰. کنجکاویهای علمی و ادبی (۹۹/۳).

**نونسم کال** (۳۹-۱۳۴۰ش)

۴۱. مجمع الغرایب مفتی بلخی (۱۰/۲۲٦).
۴۲. مذکر احباب نثاری (۲۲۷/۱۱).
۴۳. دو کلمه هروی (۲۲۸/۱۲).

**شلم کال** (۴۰-۱۳۴۱ش)

۴۴. کتیبهٔ روزگان (۲۳۲/۴).
۴۵. آیا کلمهٔ هزاره قدیمتر است؟ (۵/۲۳۳).
۴٦. صنت توپ سازی در دورهٔ احمدشاهی (۲۳۴/٦).
۴۷. قدیمترین مسافران انگلیسی در افغانستان (۲۳۵/۷).
۴۸. اوضاع مالی و اقتصادی افغانستان در قرون نخستین اسلامی (۲۳٦/۸).
۴۹. شاعر ثنا و صفت (۲۳۷/۹).
۵۰. سیرت و ابتکار و آثار شیخ الاسلام خواجه عبدالله انصاری - په دوو برخو کي (۱۰-۱۱/۲۳۸ - ۲۳۹).
۵۱. فیض الله بنیانی مؤرخ، عالم او لیکوال (۱۲/۲۴۰).

**یوویشتم کال** (۴۱-۱۳۴۲ش)

۵۲. عجایب الاخبار، د مسعود گل پېښوري تالیف (۱/۲۴۱).
۵۳. مؤلف تاریخ و قصص نابی (۲/۲۴۲).
۵۴. زبان دری دو هزار سال قبل - په دوو برخو کي (۳-۵/۲۴۳-۲۴۴).
۵۵. یک کتاب گم شده قدیم نثر دری پیدا شد (٦-۷/۲۴۵).
۵٦. یادداشتها در تاریخ صنایع افغانستان - په پنځو برخو کي (۸-۱۲/۲۴٦-۲۵۰).

**دوه ویشتم کال** (۴۲-۱۳۴۲ش)

۵۷. غرستان (۱-۲/۲۵۱).
۵۸. رسایل اعتقادات فرق اسلامی ... (۳-۴/۲۵۲).
۵۹. زایران چینی در افغانستان (۵-٦/۲۵۳).
٦۰. برمکیان بلخی - په دوو برخو کي (۷-۱۰/۲۵۴-۲۵۵).
٦۱. آیا رواق بست در قرون نخستین اسلامی موجود بود؟ (۹-۱۰/۲۵۵).
٦۲. کارنامه ابو مسلم خراسانی - لومړۍ برخه (۱۱-۱۲/۲۵٦).

**درویشتم کال** (۴۳-۱۳۴۴ش)

٦۳. کارنامهٔ ابو مسلم خراسانی - دوهمه او دریمه برخه (۱-۴/۲۵۷-۲۵۸).
٦۴. سهم برمکیان بلخی در پرورش علم و ثقافت (۵-٦/۲۵۹).
٦۵. ماثر محمودی (۷-۸/۲٦۰).
٦٦. چند کتاب گم شده عهد غزنویان (۹-۱۰/۲٦۱).
٦۷. تشکیلات عسکری افغانستان در

قرن نوزده (۱۱ – ۱۲/ ۲٦۲).

**څلیرویشتم کال** (۴۴–۱۳۴۵ش)

۶۸. امدن رسولان خطا به دربار غزنه (۱ – ۲/ ۲٦۳).

٦۹. از کتابهای گم شده (۳ – ۴/ ۲٦۴).

۷۰. رتبیلان زابلی (۳ – ۴/ ۲٦۴).

۷۱. قصص الانبیاء پوشنجی (۵ – ٦/ ۲٦۵).

۷۲. خواند میر هروی (۷ – ۸/ ۲٦٦).

۷۳. نظریهٔ جهانداری خوشحال خان ختک (۹ – ۱۰/ ۲٦۷).

۷۴. مبادی تاریخی فرهنگ افغانی (۱۱ – ۱۲/ ۲٦۸).

۷۵. تصحیح (۱۱ – ۱۲/ ۲٦۸).

**پنځویشتم کال** (۴۵–۱۳۴٦ش)

۷٦. محقق قندهاری (۱/ ۲٦۹).

۷۷. مولوی عبدالروف قندهاری (۲/ ۲۷۰).

۷۸. تاریخ وفات مؤلف کشف المحجوب (۲/ ۲۷۰).

۷۹. فخری هروی (۳/ ۲۷۱).

۸۰. په اتلسم قرن کي افغاني سفیران (۴/ ۲۷۲).

۸۱. البیروني او افغانستان (۵ – ٦/ ۲۷۳).

**شپږویشتم** کال (۴٦ – ۱۳۴۷ش)

۸۲. شیخ فقیرالله حصارکی جلال آبادی (۱/ ۲۷۴).

۸۳. یک سند تاریخی (۲/ ۲۷۴).

۸۴. اهمیت افغانستان از نظر تاریخ و باستان شناسی آسیای میانه – په دوو برخو کي (۳ – ۴/ ۲۷٦ – ۲۷۷).

۸۵. نیم قرن در آغوش آزادی (۴/ ۲۷۷).

۸٦. تاري نویسی در افغانستان (۴/ ۲۷۷).

۸۷. ضیاء محمد طبیب غزنوی (۵/ ۲۷۸).

۸۸. حرکت تنظیم زراعتی (٦/ ۲۷۹).

**اووه ویشتم کال** (۴۷–۱۳۴۸ش)

۸۹. تاج کابلشاه در کعبه (۱/ ۲۸۰).

۹۰. استدراک (۱/ ۲۸۰).

۹۱. هفت کتیبهٔ قدیم (۲/ ۲۸۱).

۹۲. افغان و افغانستان (۳/ ۲۸۲).

۹۳. لوی ټول مختار سید نورمحمدشاه صدراعظم دربار امیر شېرعلیخان – په درو برخو کي (۴ – ٦/ ۲۸۳ – ۲۸۵).

۹۴. د هرات یو مؤرخ او سفیر (۴/ ۲۸۳).

۹۵. د سمرقند سمپوزیوم (۵/ ۲۸۴).

۹٦. د رشیدالدین وزیر او مؤرخ علمي او تحقیقي ټولنه (۵/ ۲۸۴).

**اتویشتم کال** (۴۸–۱۳۴۹ش)

۹۷. فضایل بلخ (۱/ ۲۸٦).

۹۸. بیهقی و افغان شال (۲/ ۲۸۷).

۹۹. بقایای حکمرانان کوشانی در افغانستان (۲/ ۲۸۷).

۱۰۰. مکتب فکری مولانا جلال الدین بلخی (۳/ ۲۸۸).

۱۰۱. اوراق فراموش شده (۳/ ۲۸۸).

۱۰۲. بلخی یکی از پایگاههای علوم اسلامی (۴/ ۲۸۹).

۱۰۳. تحقیق برخی از اماکن بیهقی (۵/ ۲۹۰).

۱۰۴. خط بابری (۵/ ۲۹۰).

۱۰۵. دوبان حکیم کابلی در دربار خلیفه بغداد (۶/ ۲۹۱).

۱۰۶. د تاجر دوې غزلي (۶/ ۲۹۱).

**نهویشتم کال** (۴۹ – ۱۳۵۰ش)

۱۰۷. نکات جدید در تاریخ افغانستان – په دوو برخو کي (۱ – ۲/ ۲۹۲ – ۲۹۳).

۱۰۸. د جوند شاه مشهد (۱/ ۲۹۲).

۱۰۹. د عشق پور (شعر) (۲/ ۲۹۳).

۱۱۰. معرفی کتب (۲/ ۲۹۳).

۱۱۱. بابر و شخصیت علمی و ادبی وی – په دوو برخو کي (۳ – ۴/ ۲۹۴ – ۲۹۵).

۱۱۲. انساب محمودی (۴/ ۲۹۵).

۱۱۳. مین (شعر) (۴/ ۲۹۵).

۱۱۴. محمودیان بلخ (۵/ ۲۹۶).

۱۱۵. پرسش و پاسخ (۵/ ۲۹۶).

۱۱۶. شخصیت سیاسی و اداری بابر (۶/ ۲۹۷).

۱۱۷. صفحهٔ از تاریخ قضا در افغانستان (۶/ ۲۹۷).

۱۱۸. معبد زور یا زون (۶/ ۲۹۷).

**دېرشم کال** (۵۰–۱۳۵۱ش)

۱۱۹. تعمیرات عصر بابر و اثر آن در هند (۱/ ۲۹۸).

۱۲۰. دو شاعر صوفی مشرب از یک شهر (۱/ ۲۹۸).

۱۲۱. رنگهای جاوید (۱/ ۲۹۸).

۱۲۲. معرفی کتب (۱/ ۲۹۸).

۱۲۳. ونیخي (۲/ ۲۹۹).

۱۲۴. معرفی کتب (۲/ ۲۹۹).

۱۲۵. مدینة العذراء (۳/ ۳۰۰).

۱۲۶. شیخ المحدثین مولانا نصیرالدین کاکړ (۳/ ۳۰۰).

۱۲۷. معرفی کتب (۳/ ۳۰۰).

۱۲۸. بستولبنکرگاهورواق بست (۴/ ۳۰۱).

۱۲۹. عبداللطیف عباسی بنیروی (۶/ ۳۰۳).

**یو دېرشم کال** (۱۳۵۲ش)

۱۳۰. این شعر از کدام بابر است (۲/ ۳۰۶).

۱۳۱. روه در ادب و تاریخ (۳/ ۳۰۷).

**درو دېرشم کال** (۱۳۵۴ش)

۱۳۲. بلخ کانون فرهنگ (۳/ ۳۱۴).

۱۳۳. کنشکاه حکمدار بزرگ (۴/ ۳۱۵).

**څلور دېرشم کال** (۱۳۵۵ش)

۱۳۴. شیخ الاسلام قسوره گردیزی (۲/ ۳۱۷).

۱۳۵. اماکن آریانا (۴/ ۳۱۹).

**اووه دېرشم کال** (۱۳۵۸ش)

۱۳۶. پنجشیر (۲/ ۳۲۸).

۱۳۷. مختصر وافی در علم قوافی (۳ – ۴/ ۳۲۹ – ۳۳۰).

۱۳۸. شهر فیروزکوه (۳ – ۴/ ۳۲۹ – ۳۳۰).

**اته دېرشم کال** (۱۳۵۹ش)

۱۳۹. اشتباهات مستشرقین (۱/ ۳۳۱).

۱۴۰. منهاج سراج جوزجانی (۲/ ۳۳۲).

**څلوېښتم کال** (۱۳۶۱ش)

۱۴۱. عیاران یا اخیان (۳ – ۴/ ۳۴۱ – ۳۴۲).

لیکوال : ډاکټر نثار احمد صمد



# پالوال صاحب ته قلبي احترام

بسم الله الرحمن الرحیم ـ محترم او معظم ډاکټر پالوال صاحب د کندهار مجلې په تېره ګڼه کې یوه تحقیقي لیکنه کړې ده چې عنوان ئې دئ: «شاهپور تېمور او شاهپور سلیمان د ستر احمد شاه بابا دوه سیالان زامن».

معزز ډاکټر پالوال صاحب په خپله دې څېړنه کې زما هغه لیکنه ارزولې او کټلې ده چې عنوان ئې وو: «آیا تېمور شاه مشر وو که سلیمان؟» او په یوه مخنۍ ګڼه کې خپره سوې وه.

استاد پالوال صاحب په خپله دې څېړنیزه لیکنه کې ډېر عمیق او دقیق مسایل روښانه کړي دي چې زما تر سوېې لوړ دي. ضمناً ئې خپل حکیمانه او عالمانه نظر هم وړاندي کړی دئ چې تومنه ئې بالکل علمي او عیني ده.

تر هر څه مخکې رحیم او کریم خدای ته په عاجزۍ سره لاسونه پورته کوم چې محترم استاد پالوال صاحب ته کامله او عاجله شفا عطا کړي او د دوی شاګردان او شاکران د دغې لویې هستۍ له فیوضاتو او منفعاتو څخه نه محرومومي ـ آمین.

اوس به زما په ارتباط د پیاوړي استاد

پالوال صاحب د فوق الذکر څېړني څخه یو څو جملې را اقتباس کړم. دوی لیکي:

«هغه مستعد لیکوال چې دوی له هري خوا څخه په مساعدو شرایطو او محیط کښې اوسېږي، و هر څه ته ئې لاس رسېږي، زما د دغې لیکنی پر اساس دي پلټنه او ګروېږنه وکړي، څو تاریخي واقعیت برملا سوی وي».

دلته ئې زه هم د «مستعدو لیکوالو» په ډله کي شامل کړی یم چې دا د مهربان استاد لویه پېرزوینه ده ولي دا به زما له پاره ګستاخي وي چې ورسره قبوله ئې نه کړم، حال دا چې زه یو اماتور لیکوال یم. خو د عبارت نوري برخي ئې کاملاً ورسره منم چې له هري خوا په مساعدو شرایطو او محیط کي اوسېږو، و هر څه ته لاس رسي لرو او باید اړونده پلټنه او ګروېږنه وسی....

خو زه به مدقق او محقق استاد ته په صداقت سره اطمینان ورکړم چې خزانه په ویرانه کي وي! که زما غونډي سل کسان هم وتلل سي، بیا به هم ستاسو د درنښت او منښت پانګه درنه وي. که موږ ته هر څونه شرایط اماده او مساعد وي او هر سهولت، نعمت او وسعت لره مو لاس رسي تأمین او تضمین وي، بیا هم ستاسو نافع او جامع مقام حتی مسح کولای هم نه سو.

متبحر استاد پالوال صاحب بل ځای داسي لیکي: «اصلي پوښتنه دا ده چې آیا شاهپور سلیمان پر احمد شاه بابا باندي ګران ؤ، که ئې شاهپور تېمور ګران زوی ؤ؟ یا به لا داسي نور صراحت هم ورکړه سي چې احمدشاه بابا غوښتل شاهپور سلیمان ئې ځای ناستی (ولیعهد) وي، که لا شاهپور تېمور؟

د ښاغلي صمد له اخیستنو څخه داسي پوهېږم چې په دغه اړوند څه صراحت نسته.

خو چې به پېښه داسي وي، نو باید له قراینو، علایمو، کړو - وړو، قرب او سلوک څخه استنباط وکړه سي».

زه به منلي او پیاوړي استاد ته عاجزانه عرض وکړم چې ستاسو فرموده بالکل تاییدوم. خو زما هدف هلته صرف د عمر له مخي د هغوی دواړو مشرتوب او کشرتوب وو او څکه مي نو ځای پر ځای اړونده مأخذ او صفحه ورسره ذکر کړې ده. او تر کومه ځایه چې په دې اړه زما ځاني نظر دئ، هغه مي د مأخذونو او صفحو په یادونه سره د هغې لیکني په پای کي په درو مادو کي لیکلی دئ.

بل دا چې زما هغه لیکنه مي وروسته په «خبریال ډاټ کام» کي هم خپره کړه چې مشهور ژورنالیست ښاغلي میرویس افغان ئې مؤسس او چلوونکی دئ. څو ورځي بعده له لندن څخه محترمي خور صفیه حلیم هغه ته ولیکل چې وروسته له دې ما هم خپل نظر بدل کړ او نور نو سلیمان نه بلکي تېمورشاه د احمد شاه بابا مشر زوی بولم. محترمه صفیه حلیم د بي بي سي د پښتو پروګرام پخوانۍ کارمنده او نطاقه ده چې ډېر کتابونه ئې لیکلي او ګڼ علمي تتبعات ئې کړي دي. زه به د هغې د ایمیل پوره متن دلته رانقل کړم چې په دې ارتباط ئې ښاغلي میرویس افغان ته لیکلی دئ (د دې خور جملې او لهجه کټ مټ را انتقالوم او د کندهار مجلې له عزتمنو مسئولینو څخه هم احترامانه هیله کوم چې د هغې الفاظ، لهجه او جملې څنګه چې دي هغسي چاپ کړي):

«میرویس وروره
سلامونه

د نثار احمد صمد صېب لیکنه مې ولوستله چې به سلېمان او تیمور شاه کې څوک مشر و؟

ما اوس اوس یو کتاب د شاه زمان او د ټیپو سلطان تر منځ د لیکونو او سفارت په اړه پورا کړو او د چاپ لپاره مې واستولې و.

په هغې کې مې هم دغه اشتباه کړې وه چې سلېمان مې مشر لیکلې و ځکه چې ما د ځو سر چینو نه دا خبره تاید کړه.

پرون مې چاپځاې ته خبر ورکړو چې که کتاب یې تر اوسه نه وي چاپ کړي نو دا غلطي دې اصلاح کړي.

هغوي اوس زما جملو ته تغیر ورکړی دی او د دې لپاره غواړم چې صمد صېب ته زما له خوا مننه او کور ودان ووای.

د ده څېړنه ډېره مهمه ده او د تاریخ لیکونکو سره لوی ملاتړ دی.

خداې دې یې ژوندې لري

صفیه حلیم»

په هر صورت، څېړاند او هڅاند استاد پالوال صاحب د خپلې عالي او علمي لیکنې په پای کې زما څخه داسې هیله کړې ده:

«د ښاغلي ډاکټر نثار احمد صمد له اړوندي لیکنې څخه زه داسې پوهېږم چې و ده ته د احمدشاهي کورنۍ تاریخ په زړه پوري دئ او هم ئې ورسره اړونده آثار موندلي دي. که به دی نه ګانه په بل ګران ارزښته کار بوخت نه وي، نو به ښه دا وي چې ګوندي ده به د احمدشاهي دربار د منشي محمود الحسیني الجامي تاریخ احمدشاهي چې په خورا مغلقه فارسي ئې کښلئ دئ، په رواني ساده او بوبې کندهارۍ خوږې پښتو سره ترجمه کړای سي. ځکه چې یو خو دغه زموږ له پاره یو خورا مهم اثر دئ، او بل دا چې زموږ ځوانان ئې باید له لوستني څخه برخمن سوي وي. ځو دوی د فهم او شعور خاوندان سوي وي. څنګه چې دغه دوه ټوکه لوی کتاب دئ، ښایي ده به له ځانه سره کم بل تکړه د فهم ور خاوند هم ملګرئ کړئ وي. زموږ ځوانان باید په لوستنه او مطالعه سره روږد کړل سي».

زه به ګران او مهربان استاد ته احترامانه عرض وکړم چې تاسو بالکل صحیح برداشت کړی دئ او ما ته په ربښتیا هم د معاصر افغانستان د مؤسس او د هغه د کورنۍ تاریخ په زړه پوري دئ او حقیقتاً مي په دې هکله یو څه آثار موندلي هم دي.

بل احترامانه عرض مي دا دئ چې واقعاً هم د «تاریخ احمد شاهي» فارسي ډېره مغلقه ده. ما څو کاله مخکي د هغه ترجمه راپیل کړې وه خو په یوه میاشت کي تر پنځو -شپږو صفحو نور مخته نه سوم تللای او ډېر ئې ستړی کړم؛ دا ځکه چي بېحده زیات اوږده - اوږده القاب، صفات او تمجیدات لري چي د ژباړي د فن له مخي باید په امانت دارۍ سره ترجمه سوي وای خو ما ته مشکل وو، نو ځکه مي بیرته پرېښووله. داسي څوک هم نسته چي فارسي ادیب وي او ګډه همکاري مو سره کړې وای.

په پای کي د منلي او ښاغلي استاد څخه ډېره بخښنه غواړم چي د خپلي تېري لیکني له امله مي زحمت او تکلیف ورکړی دئ. نو هیله ده چي په خپله مهربانۍ او رواداري سره عفوه راته وکړي. لوی الله دي کامل او عاجل صحت ورکړي. الله تعالی دي ئې سیوری زموږ له سرونو څخه نه کموي. الله عزوجل دي موږ ټولو ته د ټولني او وطن د ټولنیز بافت او فزیکي جوړښت د متخصص او د مورنۍ ژبي د لوی معاصر څېړاند استاد ډاکټر پالوال صاحب د وصیت او نصیحت د عملي کولو توفیق راکړي. د ډېر لیري یعني دوولس زره کیلومتره واټن څخه د محترم او مکرم استاد پالوال صاحب لاسونه مچوم. والسلام، (ن. صمد).

# هنر او ادب

چلوونکی: پردېس کندهاری

د علامه حبيبي دوې غزلې:

## د عشق پور

ما ته مه وايه چې دا څه شر و شور دئ
اندېواله! په زړګي کې مې سور اور دئ

ناوکې پر سپين تندي راخپور او ربل کې
که د ورځې زړه د شپې په راتلو تور دئ؟

زه په زړه ساده د درد ناري وهمه
غماز خوشي لګولی د غا و تور دئ
که ته بولې يا شړې مې، باک مې نسته
له ازله مې پر غاړه د عشق پور دئ
ميني هسې زړه راسپين کی چې ئې ګورم
زما د سر دښمن مې هم د سترګو تور دئ

راته نه ګوري، باني کا هسې داسي:
تېره کړی ئې پر لوته باندي لور دئ

د زړه درد وو، چې مې دا غزل انشا کړ
کنه مينه او داستان خو ئې لا نور دئ
۱۰ حمل ۱۳۵۰

## غزل

ساقي پاڅه راوړه ماله جام د ملو
راسه وناڅو په منځ کې د سرو ګلو
پسرلی سو هر سړی شور و شغف کا
موږ له نه ښايي چمونه د ننتلو
زمانه پر مخ روانه ګرندی ده
انتظار نه کا زموږ د پاڅېدلو
ياران ولاړل په چمن کې ننداري کا
موږ يو پاته لا په څېر د يخ نيولو
زړه دي سوړ، حيات بې خونده سينه يخه
روح آرزو کړي د کالبوت د تشولو
تر تا و ګرزمه زما د زړه آرامه
مه پرېږده مې په تورتم د ويرژړلو
ستا دي وي که به مې هسي په غم وژنې
نسته توان په دې سره اور کې د سوځلو
په يوه پياله دي مړ قوم بيدار که
ګوره ځي مخ د ګرنګ په پرېوتلو
نه نظام د ژوند معلوم نه ئې مزه سته
نه خبر يم چې څه سر د ژوند او مړلو
بې نظامه قوم پروت دئ شاوخوا کې
انتظار کا د مسيح د پوکولو
رغ کړه پورته په فضاکي چې ټول "ويښ سئ"
تېر سو وخت د نابينا د لمسولو
د ژوندون خزان به ټوله بيا بهار سي
که ساقي و کړي همت د مې وښلو

احمد فاني

## غزل

په سپین مخ کې د سرو شونډو د رنګ طرفداران دي
په سوله کې هم خلک سته ، د جنګ طرفداران دي

اهنګ غواړي په ژوندا و په غزل کې پښتانه چې
په جنګ کې هم د سرو تورو د شرنګ طرفداران دي

پـه لپـو لپـو اوښـکي هـره شـپه وربانـدي پاشـي
یو څوک سته چې د دې توپک د زنګ طرفداران دي

د ژوند د شپو او ورځو د ترکیب په خوند چې پوه وي
پـر سـپینه سـینه بانـدي د لونـګ طرفـداران دي

د سـترګو پـه نخـرو یـې دئ **احمـد فـاني** وژلـی
د ظلـم هـم د دې مینـي ترڅنـګ طرفـداران دي

عبدالله ستوري

## غزل

زمـا د ژونـد کتـاب کـې بـه نورڅـه لـولې غمونـه دي
هـر عنـوان یـې زخـم او سـندري یـې دردونـه دي

زما د ژوند تصویر چې مصور هر وخت جوړ کړی دئ
اوښـکي دي سـلګۍ دي جنـازې دي او مرګونـه دي
زما د ژوند زمری به مهار نه کړې که څه سترې سې
خیـر کـه ورتـه سـیخ نـن د ښـکاریانو نـښانونه دي
زمـا د ژونـد پـر مېنـه چـې تحـول کلـه راغلـی دئ
تللـي لـه اوږو څـه پـه شـملو درانـه سـرونه دي

زمـا د ژونـدون **ستوري** زه د چـا څـنو کـي وتـومبم
سـرې دي پـه سـرو وینـو رژېـدلي یـې نازونـه دي

غونچه پښتنه

## نیالګی

ژوند مې وچ سپېره راغه وو
پکې نه وو ګل د هیلو
وې ولاړې پکې سپاندې
نور څه نه وو بل د هیلو
وچکالي وه، وچکالي وه
شین مې نه شو باغ د عمر
زړه مې شین وو، شونډې وچې
وو مې مړ څراغ د عمر
پکښې ډېر وو د غم بوټي
پکښې شنې د درد سپلمۍ وې
خمازوري، زهر بوټي
یا اغزني کرغنۍ وې
ته لکه کومه را پیدا سوې!؟
د پسرلي غوندې جانانه!
معطر دي زما روح کړ
خوشبویي غوندي جانانه!
تا د میني نیالګی راووړ
زما په زړه کې دي را شین کړ
تا را وینښه مې څواني کړه
زما عمر دي شېرین کړ
ستا څواني تانده چینه وه
زه پرې و غوړېدم شنه سوم
پکښې هیلي مې او به سوې
اول ګل سوم، بیا غونچه سوم
خو تا نه وم لا بوی کړې
چې باغوان!!! مې پرې کره غاړه
زما چیغي یې ګونګۍ کړې
او ویل یې ژاړه ژاړه
ته پسرلی جانانه! لاړې
ګل دي بیرته بې او به سو
د خزان کاله کې اوسم
ژوند مې بیرته وچ راغه سو

کمال الدین څپاند

## غزل

ستا نـه خـو بغیـر ولا زمـا ژنـدګي نـه کېږي
ډېري ګرانـي موري په رشتيا ژندګي نه کېږي
تــه زمــا د زړه لـــه درده څـــه خبـــر
ګـــوره مـــسيحا ژنـــدګي نـــه کېـــږي
راســـه چـــي د میـنـــي یـــو تهـداب کـــښېږدو
جـــوړه کـــړو دنيـــا ژنـــدګي نـــه کېـــږي
وایـــم چـــي لـــه ســـترګو آزار مـــه اخلـــه
خـــدایږو بیـــا بـــه ســـتا ژنـــدګي نـــه کېـــږي
خدایـــه لـــه حـــالاتو نـــه مـــي وژغـــوري
نـــه دا چـــي ســـبا ژنـــدګي نـــه کېـــږي
ډېـــر ئـــې راتـــه وویـــل "**څپانـــد**" آشـــنا
وکـــه یـــوه دوعـــا ژنـــدګي نـــه کېـــږي

سیدرحمان نادم/ پنجوايي

## غزل

داســـي ســـخته یـــې پـــه زړه لکـــه ډبـــره
هـــیڅ زړه ســـوی نـــه لـــري تـــه لکـــه ډبـــره
مـــا پـــه اوښـــکو شـــپه کـــړه تېـــره تـــر ســـهاره
تـــه بـــې غمـــه وې بیـــده لکـــه ډبـــره
د کلونـــو انتظـــار مـــي بـــې فایـــدې وو
لا یـــې تـــور کـــاني د غـــره لکـــه ډبـــره
تـــا د دوو معـــشوقو ســـترګو پـــه زور یـــاره
بـــې نفـــسه کړمـــه زه لکـــه ډبـــره
د ثـــواب څـــرک پـــه هغـــې کـــي ببخـــي نـــسته
څکـــه ټینګـــه ده هغـــه لکـــه ډبـــره
چـــي **نـــادم** تـــه دي جفـــا کړلـــه ور مختـــه
نـــو دي ســـم ســـوله بانـــه لکـــه ډبـــره

محبوب مشتاق

## غزل

څـــومره ویـــار او دبدبـــه دي مـــا تـــه راکـــړه
چـــي د خپـــل لاس نـــښانه دي مـــا تـــه راکـــړه
پـــر لېمـــو دي دا احـــسان منمـــه یـــاره
چـــي د خپلـــي خـــولې ګولـــه دي مـــا تـــه راکـــړه
زمـــا مـــخ چـــي د دنیـــا پـــه ګـــردو پټ وو
تـــا آګـــاه کـــړم آینـــه دي مـــا تـــه راکـــړه
خوشـــحالي خـــو دي پـــه خپـــل نـــوم کړلـــه ګرانـــه
خـــو د غـــم هـــره تحفـــه دي مـــا تـــه راکـــړه
تـــا پـــر خپلـــو ګوتـــو هیڅکلـــه یـــو نـــه وړه
زمـــا د اوښـــکو جنـــازه دي مـــا تـــه راکـــړه
تـــش دي وویـــل "**مـــشتاقه**" در نـــه جـــار ســـم
مـــا چـــي ویـــل دا زمانـــه دي مـــا تـــه راکـــړه

عزت الله شمشاد/ میوند

## غزل

څکه مي دا خبره خوله کي راځر ګنده سوله
د جانان مینه مي په زړه کي راځر ګنده سوله
دلتـه مـي هـم ورتـه څـو څلـه هر کلـي ووایـه
هلته څو څله په لمانځه کي راځر ګنده سوله
یاره ستا غم ته خو مي دومره حوصله کړېده
اوښکه مي وینې په بانه کي راځر ګنده سوله
زه چي د ډېر وخت له سفره کله کور ته راتلم
تر ټولو مخکي مي مور وره کي راځر ګنده سوله
ستا د راتګ پر مهال دلته داسي پېښه وسوه
سپینه رڼا وه په تیاره کي راځر ګنده سوله
بیا نوله دې میني "**شمشاده**" سرې څنګه خلاص سي
لکه لمبه په تناره کي راځر ګنده سوله

نعیم آزاد/ کوټه

## غزل

څومره په خوند څومره پر ځای د کار خبري کوي
یو هنرمند چي د رباب په تار خبري کوي
مځکه ژوندۍ سي زما او ستا د پلونو نخښي راوړي
چي ستا په ژبه ستا د کلي لار خبري کوي
د هغې پېغلي به پر زړه وي د جانان خیالونه
چي و هینداري ته په خپل رخسار خبري کوي
د یار د یاد باران ئې اوري د زړګي پر مځکه
چي باړخوګان ئې نن انار انار خبري کوي
جوړ سي د اوښکو په هیندارو کي یتیم تصویران
چي مور ماشوم ته په قربان او جار خبري کوي
د وخت استازي د بدلون خبره څنګه کوي
نن هم پرون غوندي منصور پر دار خبري کوي
ستا په شعرونو کي "**ازاده**" دومره خوند له څه دئ
دا خو د یار دنګه څواني چينار خبري کوي

حبیب الله قلم مل

## غزل

غوارم د زړه پر مملکت چي محبت پاچا سي
کله به وي هغه ساعت چي محبت پاچا سي

د کرکي ښار کي د حسد د میو پېر او پلور دي
وي به تر هغه دا حالت چي محبت پاچا سي
دا اوښتون څه سمون نه لري بدلون رانه غلی
کوو تر هغو به محنت چي محبت پاچا سي
ټوله کوښښ کوي چي مینه ډېري رایي یوسي
له دې نه پس یې دغه نیت چي محبت پاچا سي

د بې دردۍ په کان کي نسته د دردونو غمي
که وه نوسي به رااوچت چي محبت پاچا سي

جرس فرهاد

## غزل

د بل و درد ته به دوا سمه ملهم به سمه
مګر د خپل زړه له دردونو سره هیڅ نه کېږي

ما پسې ژاړي خو لوګی بانه کوي او وایي
دې مېراث مړو تنورونو سره هیڅ نه کېږي

د یار خبره ماتول زما له وسه نه ده
له دروغجنو قسمونو سره هیڅ نه کېږي

له غرونو غرونو بندیزونو نه به تېر سي سړی
د خپل وجود له دېوالونو سره هیڅ نه کېږي

کاغذ یې وپېچی له ځان سره یې پټ وویل
د ګران **جرس** له غزلونو سره هیڅ نه کېږي

نعیمه غني

## غزل

د سپوږمۍ په خوله سندرې که یې واورې
خاموشي بلا خبرې که یې واورې

کاني زړه به دې او به زما کیسه کړي
اې د غره د سر ډبرې که یې واورې

بوره مور چي د زوی سر ته ساندي وایي
لېوني به سې له لیري که یې واورې

په زړه څریکي، ستر ګي ویني، قلم اوښکي
زه ترې پېیم ملغلري که یې واورې

هر نفس د دې نسیم شاعرانه دئ
د لفظونو سوداګري که یې واورې



لیکوال: محمدابراهیم عطایي

# د نړۍ د بېلوبېلو ممالکو ادب



د یادونې په ډول:

د کندهار په عالم خېزه خاوره کې زموږ تر مشرانو عالمانو لکه، مولوي صالح محمد هوتک، لوی استاد علامه عبدالحي حبیبي، فاضل استاد عبدالرؤف بېنوا، علامه پوهاند عبدالشکور رشاد، مولانا عبدالخالق واسعي او داسې نورو مشرانو وروسته د پوهانو او لیکوالانو یوه بله کړۍ موجوده وه او ده. د دغې کړۍ ډېری غړي متاسفانه اوس زموږ په منځ کې نسته خو ځینې لا د لوی خدای په فضل راسره دي (خدای دې تر ډېره ژوندي لري). د دغې حلقې پیاوړي او نوموړي پوهان لکه: اروابناد محمدانور نومیالی، اروابناد محمدابراهیم عطایي، اروابناد محمدنادر ایوبي، اروابناد عبدالرحیم هاتف، ښاغلی ډاکټر عبدالرازق پالوال، ښاغلی استاد محمدولي زلمی او داسې نور دي.

د دې ډلې لومړې ځلور له دارالبقاء څخه دارالفناء ته تللي او وروستي دوه ئې اوس هم د ژوند پر مېنه دي. دغې ډلې پښتو ادب، تاریخ او فرهنګ ته ډېر څه ورکړي دي. د دوی تحقیقات او تخلیقات د پښتو ادب او تاریخ له پاره د ثابتو ریفرینسونو او ماخذونو حیثیت لري، چې زموږ نوي څېړونکي او ځوان لیکوالان په خپلو څېړونو او تحقیقاتو کې لو استفاده ځني کولای سي.

په دغه کړۍ کې د اروابناد استاد عطایي کړي کارونه د پښتو ادب، تاریخ او فرهنګ له

پاره ډېر د پام وړ دي. اروابناد عطايي يو مؤرخ وو، ليکوال وو، شاعر وو او بالاخره د نړۍ والو داستاني ادبياتو يو لوی محقق او څېړونکی وو. اروابناد عطايي يو له هغو افغاني پوهانو او عالمانو څخه وو چي د افغاني فوکلور په باب ئې کوټلي او غوښن تحقيقات کړي دي. د دوی په قلم ليکلي آثار د پښتو او پښتنو د پېژندني او څېړني له پاره خورا په زړه پوري موضوعات وړاندي کوي. "د نړۍ د بېلو بېلو ممالکو ادب" د اروابناد عطايي يوه کوچنۍ ترجمه ده. په دې ترجمه کړې د نړۍ د دېرشو بېلابېلو هيوادونو له ادبياتو څخه کوچنۍ کوچنۍ نمونې را اخيسته سوي او ترجمه سوي دي. د دوی دغه ترجمه د پښتو ادبي ترجمو پر کوټه يوه ښه اضافه ده.

دغه ترجمه لومړی وار په ۱۳۳۳ش کال د طلوع افغان په پاڼو کې خپره سوې ده. د دې له پاره چي د کندهار مجلې شاغلي لوستونکي له دغي ترجمې څخه نور هم خوند واخلي نو د خپل درانه استاد اروابناد عطايي دغه شپېته کلنه پخوانۍ ترجمه يو ځل بيا د کندهار مجلې په پاڼو کي خپروو، تر څو زموږ لوستونکي د دغي ترجمې څخه نور هم خوند واخلي.

م. روهيال

## مخکي خبري:

شعر هغه خبري دي چي سړی ئې په معنی وپوهېږي نو هرومرو ئې پر زړه باندي اغېزه کوي. يا ژړا وروِلي يا ئې خندوي، يا ئې زړه ورخوشحاله کوي يا ئې خوابدی کوي. يعني د هغو معناوو الفاظ دي چي احساساتو و ژبي ته راوړي وي او بيرته پر احساساتو اثر اچوي. د انسان په باطن کي ډېر متناسب شيان وجود لري او يو له هغو څخه شعر دئ. د شعر څخه د يوه انسان باطن او معنوي خوا معلومېږي او سړی پوهېږي چي د انسان د تخيل نړۍ څرنگه مد او جزر لري او له دې مد و جزر څخه د بشر زړه څرنگه متاثر کېږي؟

د هر شاعر په شعر کي د هغه د محيط د اجتماعي او انفرادي تربيې تاثيرات پوره برخه لري. د خلکو په لحاظ د محيط له مخي د تربيې له نقطه نظره هر سړی د شخصي استعداد په وجه سره د هر شاعر شعر ځانته ځانته ډول لري او ادبي تناسبات ئې په جلا جلا رنگ رنگېدلي وي.

د مختلفو اشعارو او بېلو بېلو آثارو مقايسه کول ځانته مزه لري. نو په دې نسبت مي وغوښته چي تر هغه ځايه چي د نړۍ د ممالکو د شاعرانو شعر و لاس ته راځي راټول کړم او گرانو لوستونکو ته ئې وړاندي کړم. اوس دا دئ تاسي به د نړۍ د مختلفو ممالکو د ځينو شاعرانو شعرونه پرله پسې ولولی.

عطايي

(۱)

### انگلستان

د شکسپير اثر:

### د مرگ نغمه

هغه وخت چي زه مړ سم، دمخه تر هغه وخت چي د ناقوس شوم او تريخ آواز زما پر سر وړغېږي او نړۍ والو ته دا پيغام ورکړي چي يو موجود دا غمجنه نړۍ پرېښوده...

هغه وخت چي زما بدن د تورو خاورو په زړه کي د گور له چنجيو سره محشور سي او تاسي زما پر مرگ وژاړۍ ...

حتی هغه وخت چي تاسي زما دا اشعار لولئ د هغو لاسو يادونه مه کوئ چي دا اشعار ئې ليکلي دي، ولي زه تاسي دومره دوست لرم. غواړم چي تاسي ما هېر کئ... ولي چي

ستاسي ښکلي زړونه زما له یاده څخه خواشیني نه سي.
په هغه وخت کي چي زه د مځکي په غېږ کي خاوري سوی یم، او ستاسي سترګي زما پر دې اشعارو وموښلي زما نوم مه یادوئ. پرېږدئ چي ستاسي هغه محبت چي زما سره ئې لری زما د ژوند سره یو ځای و پای ته ورسېږي، چي نړۍ ستاسي له شکوې څخه خبره نه سي او پسله زما له مرګه زما نوم ستاسي سره مسخره نه کړي.

(۲)

## د روسیې ادب

د پوشکین اثر:

### اې شاعره!

اې شاعره د خلکو په ستاینه هرګز غره نه سې! ولي چي د خلکو د مدحي او تحسین بانګونه ژر خاموشه کېږي. همدغه رنګه هرګز د تودې د بې شعوره احمقانو و خندا او ویلو ته غوږ و نه نیسې. همېشه آرام، ټینګ او جدي پاته سه!
ته پادشاه یې نو باید لکه شاه په ګنج کي واوسې، خپله لار دي په مخ کي ونیسه او و هغه ځای ته چي تاآزاده طبع رهبري کوي ولاړ سه!
د هغو اندېښنو محصول چي تې دوستي لرې و خلکو ته مفت وبخښه او د دې بخښښ له پاره ځوانمردانه تر مزد تېر سه. د دې اجر مه غواړه، ځکه ستا پاداش غیر له تا څخه بل څوک نه سي درکولای...
ته پخپله د خان دوست یې، پر تا تر خپل ځان بل څوک سختګیره نسته.
اې مشکل پسنده هنرمنده!
آیا ته له خپل کاره خوښ یې؟
آیا خپل زړه دي کوم وخت خوښ لیدلی؟
که داسي وي نو ته له دې څخه څه باک لرې، چي خلک به درسره دښمنان سي او بدي به درته ووایي...
دا احمقان پرېږده چي پر هغه معبودي استانه چي ستا اور د هغه په محراب کي لمبې کوي د خولې اوبه وغورځوي او خپل په ورو کي(؟) فکر د دې ځلېدونکي مشعل پایې ولړزوي.

(۳)

## فرانسه

د ویکتور هوګو اثر:

### ګل ویل...

ناتوانه ګل و بورا ته ویل:
"زما څخه مه تښته وګوره چي سرنوشت ځرنګه سره جلا کړي یو...
زه پاتېږم او ستا چي هري خوا ته زړه وغواړي په خلاصو وزرو الوتلای سې. سره د دې یو د بل په مینه زړه بند لرو او له خلکو لیري یو د بل په بغل کي ژوند سره کوو... او حتی زما او ستا شباهت دومره سره نژدې دئ چي اکثره وخت ما او تا دواړه ګل بولي.
ولي افسوس! چي ته له ورمې سره الوزې او زه همدغه رنګه د مځکي بندي یم.
آه! څومره آرزو لرم چي یو وار ستا سره والوزم او د دواړو د تګ لاره خوشبویه کړم... اما ته دومره لیري ځې چي زما وس دومره نسته چي زه درسره رهي سم... ته پیوسته د ګلانو په منځ کي الوزې... اما زه ګرده عمر خپله هغه سایه وینم چي د لمر په ګرځېدو سره زما پر شاوخوا ګرځي.
ته نسبتي او بیرته راځې او ما ته د بل مکان آهنګ ږغوې. اما ته خو ما وینې چي هر سحرګاه پر خپل ځای ولاړ او اوښکي تویوم.
اې بورا!

د دې له پاره چې زما او ستا عشق پایداره پاته سي لکه ما غوندي پر مځکه واوسه، یا و ما ته هم بال و پر وبخښه چې لکه تا غوندي والوزم".

(۴)

## المان

د هوفمانستال اثر:

## د ژوند ترانه

وړوکي هلکان بې له دې چې په څه وپوهېږي لویېږي او مري او په دې ډول ټوله انسانان د ژوند جاده په آرامي سره وپای ته رسوي.

مېوې ورو ورو رسېږي او په خاموشه شپه لکه مړه سوي الوتونکي له ښاخو څخه رالوېږي، څو ساعته پر مځکه پاته، وروسته وراسته او له خاورو سره ګډېږي...

باد همدغسي الوزي، او موږ دغسي خبري کوو او خبري اروو... کله د خوښۍ او کله د غم احساس کوو.

موږ دا ټوله وایو او د ګلو او زرغونو درختو او ښکلو څراغو او قبرو له بغلو بالآخره د ژوند پر پېچو لاندي باندي روان یو.

رشتیا! دا زموږ خندا او ژړا د څه له پاره ده؟

دا د ژوند بازۍ په څه درد خوري؟

آیا موږ هغه کسان نه یو چې په جاودانه ژوند کي تنها یو؟

او د لویي ټولني په منځ کي یو دوست هم نه لرو... آیا موږ ټوله هغه څوک نه یو چې په ژوند کي هیڅ هدف نه لرو؟

دا ټوله شیونه چې مو په ژوند کي ولیدل په حقیقت کي هیڅ شی نه دي، سره له دې ټولو چې فقط څوک ووایي (شپه) آیا څومره خبره کوي؟ آه! ما ته له څه پټو رازو او له څه نارسیدیو او څه آرزوګانو څخه خبر راکوي؟

(۵)

## یونان

د پوهان پاپا دیامان نتوپولس اثر:

## خزان

هغه ګلان چې پر ما ګران وه، ورځ په ورځ مړاوي کېږي او رژېږي، څکه هر فصل د ځوانۍ او پسرلي نه دئ... ملایمه وږمه ډېر وخت وچلېدله. اوس نو وخت د سړو او سختو بادو دئ چې او به په ولو کي له حرکته ودروي.

اې خوشحالۍ او خوښۍ! مګر ته اوس له دې څخه خبره نه یې چې اوس وخت د دې نه دئ چې بې جهته د هغو ګوتو په سراغ پسي راسې چې د غم نغمې پر سندرو او ساز برابروي؟

***

دا مه وایاست چې بزمي ژوند دي مدام وي، څکه دا خبره غیر له احمقانو بل څوک نه کوي...

مه وایاست چې ژوند یو بې پایه مصیبت دئ، څکه دا خبره غیر له کم دلانو بل څوک نه کوي...

همېشه لکه د پسرلي د ګلو ډکه ښاخله چې له خوښۍ څخه رېږدي وخاندئ... لکه هغه د سیند موجونه چې په خروش د ساحل د تېږو سره موښلي ناله وکړي او وژاړي... د نړۍ ټول لذات وګورئ او د جهان غمونه هم امتحان کړئ... په دغه وخت کي نو وواياست هغه څه چې ستا هغه زښت ډېر دي اما غير له خيالي خوب څخه بل شی نه تعبير کېږي.

(٦)

## استریا (اتریش)

د فرانس ګریل پارتسر اثر

## ښکلې مځکه

زما ښکلي او زېبا هیواد اتریش ته ښایي

چي د نړۍ شهزاده ګان ئې ساده اتباع وي.

تاسي خپل شاوخوا وګورئ تر کومه ځايه چي سترګي کار کوي زرغونه مځکه لکه ښکلې پېغله چي و خپل نوي مېړه ته په لبخند وي، همدا ډول و مور ته په خندا ګوري.

د چمنانو روښانه مرغه او د رسېدلو غنمو زرين رنګ او د زعفرانو ژړ رنګ او د ګلو د عطرونو بوی دا ټول شيونه له ليدونکي ځخه زړونه وړي. هري خوا ته د زرغونو موجونو ډکي درې ستاسي نظر و ځان ته جلبوي. ګواکي دا مځکه يو د ګلو ګېډۍ ده چي په زرين نوار ئې ملا تړل سوې ده.

له تاکانو ځخه پوښلي تپې وګورئ چي له هري خوا ځخه د خوشو له زړو ځخه طلايي نمايه انګور راوتلي او د خدايي لمر په روښنايي ئې خوږوالی ليدلی.

انبوه او تېره ځنګلو ته وګورئ چي د ښکاريانو د خوښۍ مايه ده...

پر دې ټولو سربېره د لوی ځښتن قدرت وګورئ، چي مېوې رسوي او هر شي ته خوبښي وربخښي، د انسان په رګو کيويني په حرکت راولي.

دا وه هغه ځه چي زموږ ګران هيواد اتريش د خوبښي مسکن ګرځوي. دا مځکه خپل ښه او بد شيان ټوله و خپلو اوسېدونکو ته ښکاروي.

(۷)

## ايټاليا

د لوپاردي اثر

### ګوښه

سبايي باران ورو ورو په خپله ګوته زما د اطاق پنجره راوهي او ما ويښوي. د قفس په منځ کي مرغان خپلي سترګي خلاصوي او خپل وزرونه سره خلاصوي. صحرايي بزګر په بېړه له خپل بستره راولاړېږي چي د کښت و خوا ته ولاړ سي...

لږ وروسته به لمر خپل ښکلی مخ د افق له شا ځخه راښکاره کړي او د باران ځاځکي به د هغه په لومړنۍ رېږدېدونکي اشعه وبرېښي...

د بستر ځخه ولاړېږم او شفافو اوريځو ته سلام کوم او په ډېر شوق سره د سبايي مرغانو و چنهاري ته غوږ نيسم. د سحر ښکلا او کلي لبخند ګورم، زما په زړه کي ډېره خوشحالي پيدا کېږي. ولي چي زه د ښار په بندو دېوالو کي چي د غم او حسد تارونه پکښي اودل سوي او زه مجبور يم چي تريخ ژوند هورې تېر کړم او د مرګ تريخ غوړپ هورې وکړم، په تنګ راغلی يم...

(۸)

## هالينډ

د چانت وان دن وندل اثر:

### ښکلا

نر او ښځه يو ډول ښکلا او لطافت لري، هر يو سر تر پايه د جمال او کمال نمونه ده، البته نر د زور او لوړوالي له لحاظه چي له ځېرې ځخه يې ښکاره ده حق لري چي ځان د نړۍ ښاغلی او بادار وبولي اما هو! همدغه ډول هغه ځه چي نارينه ئې له ښځي ځخه غواړي ښځه درلوونکې ده...

موزون اندامونه، ښکلي غړي، لطيف او نرم پوست، سحرامېزه کتل، اوس نو وګورئ حتی اسماني فرښتې هم دغه ډول مات مات او پريشانه ويښتان نه لري لکه دا چي ئې لري. وګورئ چي دا د مځکي زاده په څومره ښکلا او مستغنی پر مځکه ګرځي او ورځ په خپل ښايست رنګينوي.

تاسي وګورئ چي د دې د اندامو سپين

والی د مرغلرو تر سپین والي او د تن پوستوالی د صدق تر نرموالي ښه نه دئ؟

(۹)

## ناروې

د هنریک ایبسن اثر:

## د روښنايۍ بېره

هغه وخت چي به و مدرسې ته تلم یو زړه ور ځوان وم، ولي تر هغه وخته چي طلايي لمر به د غرو تر شا مخ پټاوه، له هيڅ شي ځخه مي باک نه درلود. اما هغه وخت چي به د شپې تاريکۍ لوی غرونه خپل په بغل کي ونيول، بې اختياره به د هغو ارواحانو له بېري چي په نکلو او قصو کي هغه بيانوي رېږدېدلم. که به مي سترګي پټي کړې، خپلو خيالاتو به راوينښولم او زما هغه تېر شهامت او جرئت به ئې راپه ياداوه.

اما نن ورځ زما په روح کي ټوله شيان بدل سوي. اوس زه خپل د جرئت وخت له لاسه ورکوم، ځکه چي لمر د شرق له خوا ځخه طلوع کوي...

اوس هغه څه چي زه به ئې په بېره کي غورځولم او د وحشت ځخه به ئې زما اندامونه رېږدول، د شپې تاريکي ئې سبب نه ده، بلکي هغه د روځي روښنايي او غوغا ده...

فقط چي شپه ورسېږي او زه د ظلمت په نقاب کي پټ سم آرام سم... زه په تاريکي کي هغه ډول خپل ورک جرئت بيا پيدا کوم... لوی دريابونه او سوځوونکي اورونه دې مبارزې ته طلبوم، شاهين غوندي د اسمان د اوريځو په زړه کي ننوزم، وحشت او اضطراب له خپله فکره باسم، تر هغه وخته چي د سهار روښنايي بيرته راځي.

هو! اوس چي د پرېښوولو قابل اثر پرېږدم دا اثر د تاريکۍ زاده دئ، آه! له هغه وخته چي تاريکه هم خپل د حمايت لاس زما د سر ځخه پورته کړي، او ما له ځانه سره تنها پرېږدي.

(۱۰)

## سويډن

د استريندبرګ اثر:

## د يکشنبې شپه

باد له الوتلو ځخه درېدلی، د برکې په خاموشه اوبو کي هر شی انعکاس کوي ولي پخپله برکه داسي ايسي لکه په ابدي خوب چي بيده وي ... د ژرندي ځرخونه نور حرکت نه کوي، هغه بادبانونه چي له ساحل ځخه ليري معلومېږي هم نه رېږدي.

غواوي په آرامي سره د څړځايو ځخه راګرځي.

هر شی او هر موجود د استراحت له پاره اماده کېږي، سپک وزري مرغان د خپلو ځاليو پر خوا په پرواز دي. کليوال د اورو په بغل کي ناست دي. لرګي ماتوونکي خپل آخرين لرګي راټولوي، چي له هغه غوزي وترې. باغوان و خپلو باغچو ته اوبه ورکوي او مراوي ګلونه له ښاخو ټولوي... په کورونو کي ښکلي ناوي د ناقوس شکله او ز ښا ګلونه لاندي پرتې دي.

مور خپل آخرين نظر چي سترګي ئې له خوبه ډکي وي د زوی پر ځېره اچوي او ځراغ خاموشه کوي لږ ګړی وروسته به ټوله اوسېدونکي بيده سي، ګواکي دا د دوبي شپه هم چرت وهونکې و خوب ته رهي ده. فقط د درياب په ساحل کي موجونه ورو ورو د تېري هفتې په ياد خروښېږي.

نور بيا...

***

# د سقراط تلپاته نظريات

لیکوال: زنه فین



مترجم: واحد فقيري

## پنځم فصل

## د اعتدال ستايل

که چيري اعتدال د انسان له پاره تقوا او فضيلت وي، چي البته بې له شکه دي، نو راځئ وګورو چي سقراط په دې هکله څه ويلي دي، او دا هم وڅېړو چي ايا د سقراط د اظهاراتو په وجه څه اصلاحات تر لاسه کېداى سي او کنه. زه به دلته په دې باره کي د هغه يو بحث تاسو ته بيان کړم:

سقراط وويل: «که چيري موږ په يوه جنګ کي اخته سوو، او بايد د دفاع له پاره يو جنرال وټاکوو؛ ايا موږ به يو داسي شخص انتخاب کړو چي شرابي او زنکه باز وي، او يا داسي کس چي زحمت او ناخوالي نه سي ګاللاى؟ ايا موږ به په دې ډاډه يوو چي يو داسي قومندان به زموږ دفاع وکړي، او يا زموږ دښمن به مات کړي؟ او يا که چيرته موږ د مرګي پر کټ پراته يوو، او د ځکندن په حالت کي يوو، او د خپلو بچيانو د پاينښت او روزني له پاره بايد يو وصي او مربي وټاکو، څو زموږ زامنو ته د تقوا او فضليت اصول او لاري چاري

وښيي، او هم زموږ لوښي د عزت په ګاڼه ښکلي کړي. هغوی د خپل ثروت او کور د ښه مدیریت په علم باندي وپوهوي، او دا ور وښیي چي باید خپل خاوند او کور ته با وفا و اوسي، ایا موږ به د دې راز کارونو د کولو له پاره د یوه فاسق او فجور سړي استخدام ښه او موجه وګڼوو؟ ایا موږ به د خپلو رمو او ګودامونو د ساتلو مسئولیت یوه شرابي او نشه یي سړي ته وسپارو؟ ایا موږ به پر همدې سړي باندي د خپلو نورو کاورنو د کولو ویسا ولرو؟ لنډه دا چي که چیري موږ ته یو داسي مریی په سوغات راکړه سي چي پورته اوصاف ولري، ایا موږ به دا هڅه و نه کړو چي د دې ډول سوغات له اخیستلو څخه ډډه وکړو؟ بل خوا، که چیري موږ د خپل نوکر د فسق او فجور په باره کي ډار ولرو، ایا موږ باید په خپله کوښښ و نه کړو چي په همدې بدو عاداتونو باندي اخته نه سوو؟ برعلاوه، یو سراښ سړی په دې خوشحاله کېږي چي خپل ځان بډای کړي، او یا د بل چا پر جایداد باندي خېټه واچوي، څو خپل ثروت زیات کړي. مګر یو فاسق او مفسد سړی هم د نورو له پاره تکلیف ایجادوي او هم خپل ځان په خطر کي اچوي. موږ کولای سو چي داسي کس د ټولي نړۍ له پاره مضر وګڼو، او په عین حال کي ئې د خپل ځان له پاره لا مضر وبولو. ځکه هغه نه یوازي خپله کورنۍ تباه کوي، بلکي په عین وخت کي خپل صحت او روح هم تباه کوي چي په خپل ذات کي د نورو خلګو له پاره هم مضر او زیانمن دي. اوس نو، څوک کولای سي چي د هغه چا له صحبت او ملګرتیا څخه خوند واخلي چي پر ته له خورک او څښنګ څخه بل هیڅ کار او تفریح و نه لري، او څوک به د یوې فاحشې سره ناسته د خپلو یارانو پر مجلس باندي غوره وګڼي؟ اوس نو، ایا زموږ له پاره په کار نه ده چي تر بل هر څه اعتدال ته زیاته توجه وکړو، او تمرین ئې کړو. موږ ولیدل چي اعتدال د نورو ټولو تقواوو مور ده، ځکه ایا پرته له دې څخه بل داسي کار سته چي په کولو او ستایلو وارزي؟ بل پلو، ایا د هغه سړي حالت چي تل په شهوت کي ډوب وي، بد او کرغېړن نه وي؟ یقیناً، زما په نظر، یو آزاد شخص باید هیڅکله د داسي نوکرانو د درلودلو هیلمن نه وي چي په شهواني غریزو لتاړ وي؛ او هغه نوکران چي په دې ډول شهواني بې قاعده ګیو باندي معتاد دي، هغوی باید خدای ته عذر او زاری وکړي چي د مهربانو او بخښونکو امرینو په لاس کي ولوېږي، ځکه په بل صورت کي به له تباهۍ او عذاب سره خامخا وي».

په دې اړه به سقراط البته عادتاً او تل همدا خبري کولې. مګر که چیري هغه په خپلو مجلسونو او مباحثو کي د اعتدال عاشق او مینه وال ښکارېدی، سقراط په خپلو اعمالو کي د اعتدال خیال ساته، خو هغه داسي نه ښوده چي ګواکي دی د حواسو، لذت او عیش په مقابل کي نه مغلوب کېدونکی وي. سقراط په دې برخه کي دونه هڅه کړې وه چي حتی ځان ئې د جایداد د تصاحب له ښادۍ څخه محروم کړی وو؛ ځکه هغه باور لاره چي هغه څوک چي د نورو څخه پیسې قبلوي، هغه مجبوره دئ چي هغوی خوشحاله وساتي، او د هغوی داسي مریی سي چي د هغه بل مرییتوب سره چندان ډېر توپیر نه لري او حتی تر نورو لا زیات افتضاح زېږنده وي.

نور بیا ...

***

لیکوالان: خالد اقبال یاسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثار احمد آریا

## نوبل جایزه وړونکي ادیبان

# فریډرک مسترال

(Frederic Mistral)
(۸ستمبر ۱۸۳۰م – ۲۵مارچ ۱۹۱۴م)

**(اوومه برخه)**

د فرانسې د جنوب ختیځې سیمې پرووونس (Provence) اوسېدونکي شاعر (فریډرک مسترال) ته د هسپانوي ډرامه نګار هوسې ایچیګارای (Jose Echegaray) سره په ګډه په ۱۹۰۴م کې نوبل ادبي جایزه ورکړه سوه.

فریډرک مسترال ته دغه جایزه په ادب او فلسفه کې د خدمت له امله ورکړه سوه. مسترال ځان د هومر خاکساره شاګرد باله. نوموړي د خپل پلرني ټاټوبي او د هغه د اوسېدونکو په اړه خورا احساساتي نظمونه ولیکل. د پرووونس د سیمې د منځنۍ پېړۍ د مشهوري عشقي شاعرۍ څرکونه د هغه په شاعري کې لیدل کېږي. په ۱۹۰۴م کې د نوبل جایزې د ورکړې پر مهال د نوموړي د یوه نظم په اړه وویل سوه: "د دې نظم آهنګ متوازن او ښکلی دئ. د نظم هنري ترکیب پر ټولو معیارونو باندي پوره خېژي. مسترال په دې شاعرۍ کې له اروا پوهنې څخه تر لاسه کړی ځواک نه دئ کارولی، بلکي د دې ځواک سرچینه فطرت دئ. په دې نظمونو کې انسان د فطرت زوی بلل سوی. نور شاعران هم باید په خپله شاعري کې دغه رنګ دخیل کړي چې د انساني روح له عمق څخه را پورته سوی دئ".

فریډرک مسترال د فرانسې په جنوب کې د راین نومي درې په یوه کلي کې وزیږېد. هغه د یو خوشحاله بزگر یوازینی زوی وو. له کوچنیوالي څخه ئې د خپلي سیمي له ځانگړي لهجې سره لېونی مینه پیدا سوه. نوموړي د اوینان (Avignon) سیمي په یوه پوهنځي کي زده کړي وکړې. د زده کړي پر مهال هغه هومر او ورجل په غور سره مطالعه کول.



نوموړي په ښوونځي کي د زده کړي پر مهال په لیکنه پیل وکړ. لومړنۍ لیکني ئې په خپله مورنۍ ژبه او سیمه ایزه لهجه پرو ونکل (Provencol) باندي کولې. مسترال هیله درلوده، چي شاعري وکړې، خو د هغه پلار په دې فکر وو، چي تر څو ئې زده کړي نه وي بشپړي کړي، نو باید بلي خوا ته رجوع و نه کړي. په ۱۸۵۱م کي د حقوقو تر لوستلو وروسته هغه په مسلکي ډول لیکنو ته مخه کړه. یو کال وروسته د هغه د نظمونو لومړۍ مجموعه خپره سوه.

مسترال خپل ټول ابتدایي آثار په فرانسه کي د اوسېدو پر مهال بشپړ کړل. په ۱۸۵۲م کي چي د هغه د نظمونو لومړۍ مجموعه چاپ سوه، نو ډېر ژر ئې خورا ډېر مینه وال پیدا کړل. د هغه د شاعرۍ لومړۍ مجموعه د نوموړي پخواني استاد جوزف رومینلي (Joseph Roumanille) ترتیب کړې وه.

د ۱۸۵۴م کال د مي میاشتي پر ۲۱ نېټه هغه د خپلي سیمي پروونس د کلتور او ژبي د ساتني له پاره د (Felibres) په نامه ټولنه جوړه کړه. دې ټولني د (Armana Prouvencau) په نامه د یوې جریدې خپرول هم پیل کړه. په ۱۸۵۹م کي د هغه یوه بله مجموعه د (Mireio) په نامه خپره سوه. د دې مجموعې اشعار رزمي نظمونه ول. د نوموړي دغه مجموعه د پرcroونس د سیمي د ادبي غورځنگ مهم کتاب گڼل کېږي. دې کتاب د پروونس د سیمه ایزي ژبي په ساتنه کي مهم رول ادا کی.

مسترال په شلو کلو کي د پرووونکل ژبي یو علمي قاموس ولیکی. دغه قاموس په ۱۸۷۸م کي په دوه ټوکه کي خپور سو. نوموړي په نوبل جایزه کي ورکړل سوي پیسې د یو موزیم په جوړولو مصرف کړې. په دغه موزیم کي د پرووونس د سیمي بشري آثار خوندي کړل سول. که څه د نوموړي په هڅو سره دې ژبي خپل پخوانی مقام تر لاسه نه کی، خو د مسترال د شاعرانه ځواک له امله دې ژبي ته یو لازواله هنري اثر ور په برخه سو.

***

# اغېزه ناکه مذاکره

## د مذاکرې خاصي نقطې وپېژنئ
## دوه اړخيزه ګټونکي حالتونه وپېژنئ
## اجنډا جوړول او د مقابل لور اجنډاوو ته جوابونه

ليکوال: کين لاسن، ايم. اې، اي ډي. ايم
ژباړه: **سعيد لودين/ کاناډا**

(پنځمه برخه)





**د ګټو ژبه:**

مور وليدل چي د حريف د موقف تر شا هغه څه پيدا کول چي دی (حريف) هڅوي دا معنا لري چي د هغه (حيف) ګټي د پوښتنو او اټکلونو د امتحانولو په ذريعه وسي. د دغسي ګټو پيدا کول او پر ږغېدل خپله ځانګړې ژبه غواړي. لاندي مثالونه په نظر کي ونيسئ:

**۱/ خپلي ګټي په رښتيا سره تشريح کړه:**

ته خپله ووايه چي ته څه شي غواړې. ته د خپل حريف څخه دا توقع نه سې کولای چي هغه دي ئې و اټکلوي. دا کار به د حريف په اټکلونو کي له هغه سره چي ستا د ګټو په اړه ئي لري مرسته وکړي. دا به ستا سره په دې کي هم مرسته وکړي چي د مذاکرې رهبري تر لاسه کړې.

**۲/ نيوکه پر مشکل وکه نه پر خلکو:**

د دې هنر زده کول سخت دي په تېره چي بيا د ګټو په اړه ږغېږی. که نيوکه پر مقابل لور وسي و چا ته چي ګډ ياست، هغه به دفاعي حالت غوره کړي او نور به دې په غور هم نه اوري.

– د هري ستونزي ماهيت تشريح که:

– هيڅکله هم پر خپل حريف په دې ډول نيوکه مه کوه چي ستا د ګټو خرابوونکی دئ.

– خپلو ګټو ته په ډېره دلچسپۍ ژمن اوسه او د نورو رابرسېره کېدونکو ستونزو په اړه هم مثبته رويه اختيار که.

– هر چا ته چي ګډ يې حمايه ئې که. دا به په دې معنا وي چي ته پر ده باندي شخصي نيوکه نه کوې.

– د خپل حريف څخه د هغه د وخت او توجه څخه مننه وکه او دا ورته ښکاره کړه چي ته هم د هغه ګټي محسوسولای سې. دا کار به داسي يوه فضا جوړه کړي چي په هغې کي ستونزي چابک او اسانه حل سي.

**۳/ ستاسو د ګټو تاثیر مو باید په مذاکره کې پوره احساس سوی وي.**

د هر کار سره چې مخالفت ښووی باید د هغه کار تاثیر مو پوره تشریح کړی وي. دا کار ستاسو و ادعاوو ته مشروعیت بخښي. مشروع ګټې نه یوازې د قناعت وړ وي بلکې بابېزه ګڼل یې هم سخت وي.

**۴/ په خپل برخورد کې نرم اوسه:**

د خپلو ګټو په تر لاسه کولو کې د نورو لارو په اړه هم فکر وکه. دا یعني ته باید د حل لارو په انتخاب کې نرم اوسې او هغه حل لار غوره کړې چې ستا د ګټوله پاره تر ټولو وړ او مناسبه وي.

**۵/ په خپلو خبرو کې هدف ایجاد که:**

هدف ایجادول یعني ستا نظر باید ډېر روښانه وي چې ته مذاکره چیرې غواړې چې بوزې. د دې څخه مراد دادئ چې ته:

– باید لیرې وګورې او د کوچنیو او دستي ګټو تر لاسه کولو څخه ځان وژغورې او داسې حل لار پیدا کړې چې د دواړو خواوو ګټې پکښې خوندي وي.

– و خبرو ته عکس العمل مه ښکاره کوه ځکه دا نورې ستونزې رابرسېره کوي، د دې پر ځای خبرو ته په ښه ډول غوږ سه.

– پوښتنې وکه چې ولې یو خاص موقف (د حریف له خوا) نیول سوی دئ او وروسته دا وګوره چې خپلې ګټې څنګه تر لاسه کولای سئ خو په عیني حال کې مو باید د حریف ګټې هم په نظر کې نیولې وي.

**اجنډا جوړول:**

د دې ترمخه چې ته و یوې مذاکرې ته ولاړ سې، تا ته باید تر مخه لا در معلومه وي چې په غونډه کې کومې لانجې څېړل کېږي. دا به ډېره ښه وي چې تا تر مخه لا یوه اجنډا ورته جوړه کړې وي او د غونډې تر پیلېدو ترمخه ئې لا د ګډونوالو سره شریکه کړې. د یوه ښه پیل له پاره لاندې پوښتنې او خالي خانې ډکې که:

د پروژې نوم: (...)

تاریخ: (...)

ګډون کوونکي: (....)

۱/ ګډون کوونکي څوک دي؟

(............................)

۲/ غونډه باید څونده وخت دوام وکړي؟

(.....................................)

۳/ څوک به یې پیلوي؟

(......................)

۴/ د بحث له پاره د لانجو لیست ترتیب که:

(......................)

۵/ هر مضمون ته باید څونه وخت ورکړل سي؟

(......................)

۶/ د هغو لانجو لیست جوړ که چې ته یې څېړل نه غواړې. پام مو وي چې دا د اجنډا پر کاغذ لیست نه کې بلکې یو جلا نوټ یې واخلئ.

**چک لیست:**

۱/ د ګډون کوونکو د نومونو، کار او رتبو یو چټک لیست درلودل ډېر ګټور وي.

۲/ د غونډې د جریان او اوږدوالي وخت ټاکل به و ټولو خواوو ته دا روښانه کړي چې مذاکره باید څونه تشریحي مرحلې ته داخله سي.

۳/ د دې له پاره چې دواړې خواوې مو د رتبو پر سر له شخړو څخه ژغورلې وي، غوره ده چې یوه خوا وټاکل سي او هغه غونډه پیل کړي.

۴/ د خپلو لانجو لیست مو له ځان سره د بحث له پاره ولرې خو صرف په لنډه توګه ئې غټې نکتې نوټ کړئ.

۵/ د بحث له پاره د موضوعاتو مناسب انتخاب او اوډلو ته مو ئې باید پام وي. یوه ګډوډه اجنډا به ډېره ژر ناکامه سي او اعتبار ته به مو هم زیانمنه تمامه سوې وي.

۶/ موضوعاتو ته وخت ټاکل به په دې ښه وي چې تاسي په لومړۍ نکتې کي له بندېدلو څخه وژغوري.

**تر شا کېدل – ستا بي اې ټي ان اې:**

د کورني کار او د مذاکرې د ماهرانه تاکتیکونو پر کارولو سربېره ښایي ته پر خپلو خاصو لانجو و جوړي ته و نه رسېږې. نو څه به کوې؟ خپل دفتر ته بیرته خالي لاس او بې له جوړي ځې؟

له همدغسي یوه حالت سره بې تجربې مذاکره کوونکي تل لاس و ګرېوان وي. د داسي حالت د مخنیوي له پاره باید خپله بي اې ټي ان اې جوړه کړې. بي اې ټي این اې یعني ستا ښه ترین متابدل. دا د مذاکره سوي توافق هغه اصطلاح ده چې راجرفیشر او ویلیم اوري ئې په ۱۹۸۱ کي هوکړي ته سره ورسول. دا ستا سنجول سوی د تر شا کېدلو موقف دئ. دا په داسي یوه حالت کي ستا په درد خوري چې په هغه کي ته د خپلو لویو او مهمو اجنډاوو جوړه نه سې تر لاسه کولای.

ستا د بي اې ټي این اې خاصي نکتې:

۱/ په ظاهره د بي اې ټي این اې معنا دا ده چې دا ستا د مشکلاتو د حلولو دوهمه ښه لار ده خو دا یوه غلطه مفکوره ده. ستا بي اې ټي این اې د حل لارو یوه بېله او جلا طریقه ده، چې تا باید د خپلو ګټو و تر لاسه کولو ته ډېر نژدې کړي. په همدې خاطر نو دا ستاسي اخرنی پلان نه دئ. دا و هغه خطر ته چې و جوړي ته د رسېدلو مخنیوی کوي یو خیالي او تصوري حل دئ.

۲/ ستاسي بي اې ټي این اې تاسي ته دا موقع په لاس درکوي چې د یوه قوي موقف په درلودلو سره معامله په پر مخ بوزئ دا ځکه چې تا د اې پلان د کار نه ورکولو په صورت کي و بي پلان ته لیڅي رانغښتي دي. دا کار مذاکره ډېره قوي کوي ځکه ته یو ډېر قوي متبادل لرې.

۳/ ستاسي بي اې ټي این اې تاسي له یوه داسي حالته ژغوري چې و جوړي ته د رسېدلو له پاره هر څه پکښې حتمي منل وي. د تر شا کېدلو پلان نه درلودل تاسي په یوه ډېر فشاري حالت کي اچوي او مجبوروي مو چې و جوړي ته حتمي ورسېږئ او شاید نتیجه ئې داسي وي چې په تاسي هغه څه ومنل سي چې وروسته به پر پښېمانه یاست.

لاندي مثال ته غور وکړئ:

تاسي ته د یوې کمپنۍ له خوا د کاله د څلوېښتو زرو ډالرو معاش وړاندیز وسو او ته و کار ته ضرورت هم لرې ځکه چې ته پوروړی او نور اخراجات هم لرې. یو بل کارګر همدا کار له کاله په پنځوس زره ډالره کوي. ستا وړاندیز د پنځوسو زرو له پاره رد سوی دئ. نو څه کوې؟

ته صرف دوې لاري لرې: یا به د کاله د څلوېښتو زرو ډالرو کار منې او یا به نو بل ځای کار پیدا کوې. د بي اې ټي این اې په درلودلو سره ممکنه ده چې د دې ټکر مخه ونیسې. کوښښ وکه چې د معاش تر مذاکرې ترمخه مو خپله بي اې ټي این اې جوړه کړې وي. دا به تاسي په یوه ښه موقف کي درولي یاست.

۱/ هغه داسي چې تاسو د ۴۰۰۰۰ کار ومنی خو په دې شرط باندي چې د شپږو میاشتو په اخیر کي به کمپنۍ ستاسي کار ارزیابي کوي او تنخوا به هم بیا و مذاکرې ته وړاندي کېږي. ته پوهېږې چې په دې موده کي کار په ډېره ښه توګه تر سره کولای سې او ستا اړتیاوي به تا ته نوره انرژي درکړې وي چې کار په ښه توګه تر سره کې.

۲/ ته بله میاشت یوه بله انټرویو هم لرې. ته چې په کومه رشته کي کار کوې هغه مخ پر غوړېدو ده او په اینده کي ته د ډېرو ښو کارو له پاره ښې موقع تر لاسه کړې. ته و دې کار ته هیڅ ضرورت نه لرې.

۳/ ته خپل پورونه په یوه بل ډول هم ادا کولای سې. ښایي ته و دې ته لا هم اماده سې

چې د ډېر ضرورت په وخت کې خپل کور خرڅ کړي. ستا تل زړه غواړي چې سفر وکړې. د کور تر خرڅېدو وروسته ته یو بل کوچنی کور رانیولای سې او تر هغو ئې په کرایه ورکه تر څو ته بیرته راځې. یو څه پیسې په اڅارو کې بندي که او په پاته پیسو باندي خپل پورونه او سفر وکه. ته و دې کار ته هیڅ ضرورت نه لرې.

د لوړو سناریوو څخه هر ه یوه د یوې ښې بي اې ټي این اې داساس په توګه کارېدلای سي او کولای سي چې تا له داسي یوه حالته وژغوري چې پایلي ئې په ناچارۍ، هر څه منل وي ځکه ته د حل نوري لاري هم لرې چې یوه به دي و ښه کار ته ورسوي او بله به دي د پورونو څخه خلاص کړي . اوس نو ته د مذاکرې په یوه قوي موقف کي یې.

لومړی باید خپله بېټنا (بي اې ټي این اې) د مذاکرې تر غونډي دمخه جوړه کړې او یا به نو ډېره قوي حافظه لرې چې بې له بېټنا په هغه دم هر څه ته لاري پیدا کړې، ښه حل لاري تل د ضرورت په وخت کي ذهن ته نه راځي. د خپلي بېټنا (بي اې ټي این اې) د جوړولو له پاره لاندي څلور شیان په نظر کي ونیسئ.

**۱/ د متبادلو لارو لیست:**

د لوړو مثالونو په څېر، خپل متبادل په نظر کي ونیسئ. له دې څخه مراد دا دئ چې تاسي نوري لاري هم لری چې خپلي ګټي په خوندي کړئ.

**۲/ له خپلو منابعو څخه کار واخلئ:**

بېټنا (بي اې ټي این اې ) جوړول به ښایي ستاسي څخه وخت ونیسي. د خپلو منابعو په استعمال سره به دا یقیني کړئ چې لومړی حل لاري مي کومي دي. دا په خاصه توګه په هغه حالت کي ضروري دئ چې مقابل لور زورور وي، پوهه، تجربه، پټ معلومات، پیسې، وخت او د خلکو سره اړيکي ټول هغه منابع دي چې د یوې ښې بېټنا (بي اې ټي این اې) په جوړولو کي باید و کارول سي.

**۳/ حقیقت معلومول:**

تاسو ښایي په لیست کي په درزنو مختلف متبادلونه ولرئ او یا ښایي صرف یو متبادل ولرئ خو په دوړاو حالتونو کي باید حقیقت بینه واوسئ. نه تر اندازی زیات ناامیده سی او نه هم زیات امیدواره واوسی. نو څه وکړو؟ خپله کارخانګي وکړئ، ټول حقیقتونه او پایلي ئې په ذهن کي وڅېړئ، چې په دې کار سره به مو د خپلو فیصلو بنیاد پر پخو منابعو درولی وي.

**۴/ بهترین ئې انتخابول:**

خپلي فیصلې د هغو ثبوتونو په رڼا کي وکړئ چې سره را غونډ کړي مو دي. هر څونه چې کېدلای سی هغونده حقیقت بینه و اوسئ. دا مو باید په یاد وي چې هر څونه چې مو ښه بېټنا (بي اې ټي این اې) وي هغونده ئې په ګټه اخیستلو کي اساني وي او هغونده د هغو مسئلو په ردولو کي در ته اساني وي چې ستاسو پر طبیعت نه وي برابري.

**خپله بېټنا (بي اې ټي این اې) استعمالول:**

په مجموع کي ستاسي بېټنا ستاسو له پاره د یوې آلې په څېر ده چې د هغې له رویه تاسي کولای سی ځان ته معلومه کړی چې نوري ګټوري او مناسبي لاري هم سته چې و جوړي ته مو سره رسولای سي او مجبوره نه یاست چې د خپلي خوښي خلاف مادې قبولي کړی.

**درواغ مه وایه:**

اصلي خبره دا ده چې تاسي و مقابل لور ته داوښووی چې ډېره ښه متبادله لار لری او کوښښ کوئ چې په اینده کي ئې د ضرورت پر اساس پر کار واچوی. دا کار په درواغو مه کوئ، ځکه کېدای سي تاسي و خپلي بېټنا (بي اې ټي این اې) ته په رښتیا ضرورت پیدا کړی. د مثال په توګه تاسي کولای سی چې و غونډې ته یو وکیل هم راولی او مقابل لور ته داوښیاست چې ستاسو بېټنا (بي اې ټي این اې) قانوني حیثیت لري.

نور بیا ...

(۴)

# د کابل پیغله

(په زړه پورې اسلامي تاریخي ناول)

لیکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسین صدیقي
ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا



## یوه بله مصیبت ځپلې قافله

ارشد ډېر خوشحاله وو. څېره ئې تازه او غوړېدلې وه. دا خوښي او شادابي د څو غلو د ځپلو او ماتولو له امله نه، بلکې د حُسن جهانې او ستارې د پیدا کولو له درکه وه.

هغه پر حسن جهانې باندې دومره زړه بایللی وو چې تېر سوچونه او راتلونکې فکرونه یې ټول بالکل هېر کړي ول. بلکې صرف د جرئت، شهامت او شجاعت څخه ئې کار اخیستی وو. که ده د هوښیارۍ څخه کار اخیستی وای، نو بچهٔ سقاو به ئې په همدې ورځ نیولی یا وژلی وای چې له امله به ئې په دې وادي کې د هغه د غلو تعداد بیخي لږ سوی وای. څنګه چې هغه د غفلت او بې فکرۍ څخه کار اخیستی وو، نو په ډېره آسانۍ به نیول سوی وای او په دې ډول به د افغانستان د دغه اړونده خوني داستان، چې موږ یې لیکو، اړتیا نه پېښېده. نه به د افغانستان تاریخ بدلېدی او نه به هم هلته د اور باران کېدی. نه به د وینو ویالې بهېدلې وای نه به پاک مؤمنان د مرګ کندو ته لوېدلي وای. نه به د افغانستان پاچا په مصیبت مبتلا کېدای او نه به هم افغان اولس تباه او برباد کېدای. نه به وطن ورانېدی او نه به پر ارشد باندې هغه مصیبتونه چې ورسره مخامخ سو، نازلېدل او بالاخره شاپېرۍ غوندې حُسن جهانه به د داسې د بلا په خوله نه ورتلله.

د دې هر څه د مخنیوي له پاره صرف یوه بهترینه لاره موجوده وه او هغه دا چې ارشد د اشرف په خوله کړې وای تر څو هغه خپل ملګري راوستلي وای او دغه وادي ئې نیولې وای او په دې توګه ئې بچه سقاو او د هغه ډله ټپله نیولې وای.

خو دا هر څه په قسمت پورې اړه لري

يعني دا چي جگړه وسوه او تدبير و نه سو. ارشد بس دا غنيمت وگڼله چي د ځوارلسمي سپوږمۍ غوندي ښايسته پېغلي په آزادولو او راخلاصولو کي بريمن سو. هغه خپل مأموريت صرف دا وباله چي ښکلي نجوني روغي رمټي راورسوي او همداسي ئې هم وکړه.

ده دا ښايسته نجوني هغه ځای ته راورسولې چي د غرمې ډوډۍ ئې پکښي خوړلې وه. دا مهال د ورځي صرف يو بل ساعت لا پاته وو يعني لمر کرار کرار لوېدی. د لمر ژړي وړانگې د غرونو پر دنگو دنگو څوکو باندي لوېدلي وې. د جگو غرونو له امله هره خوا تياره معلومېده. هغه زړه وړونکې منظره چي د ورځي معلومېده، دا مهال ښېرونکې ښکاره کېده.

دغه ځای ته په رسېدو سره ټولو پوځيانو پر يوه چينه باندي اودسونه تازه کړل، لمونځونه ئې وکړل او وروسته مخ پر جبل سراج وخوځېدل.

د يخنۍ موسم وو، يعني د ۱۹۲۸ کال د نوامبر مياشت وه. د لمر په لوېدو سره د واوري اورېدل هم کرار کرار پيل سوه. د دې سره سم سړو هم خپل وزر غوړاوه. که څه هم سپوږمۍ راختلې وه مگر د واوري اورېدو له امله هغه صافه او روښانه نه معلومېده. نور لا څه، چي نږدې شيان هم سم نه معلومېدل.

شاپيرۍ غوندي حُسن جهانه او سپوږمۍ غوندی ستاره دواړي پر آسونو سپرې وې. ارشد د هغوی په مخکي روان وو. که څه هم دغو سپين مخو نجونو وړين شالونه پر ځانو اچولي ول، خو د يخنۍ د زياتېدو له امله د هغوی هم يخ کېدی. ارشد يو اوږد وړين او ډېر گرم کوټ اغوستی وو چي رنگ ئې تور وو. ده پر حسن جهاني ږغ وکړ او داسي ئې ورځخه وپوښتل: پېغلي! ستا خو به ډېر يخ نه کېږي؟

حسن جهاني د شرم او حيا له امله ځواب ور نه کړ، خو شوخي ستارې ژر ځواب ورکړ او داسې ئې ورته وويل: هو، ساړه خو دي مگر په دې وخت کي به ئې چاره څه وي؟

ارشد: زما سره دغه پشمي ډېر تود کوټ دئ، دا واخلئ او د هري يوې چي ډېر يخ کېږي پر ځان ئې واچوئ.

ستارې په خندا سره ورته وويل چي د حسن جهاني ډېر يخ کېږي او دا کوټ دي هغه پر ځان واچوي.

ارشد هم ډېر ژر خپل کوټ وکيښ او هغه ئې د حسن جهاني خوا ته ونيوی او داسي ئې ورته وويل:

که څه هم دا نامناسبه ده چي ته دغه کوټ واغوندې، لاکن د دې سخت يخ په وړاندي به ئې اغوستل بده نه وي.

حسن جهاني په شرمندوکي نظر سره ارشد ته وکتل او داسي ئې مخاطب کړ: دا صحيح ده چي زما يخ کېږي، لاکن دغه کوټ...

ارشد د هغې خبره قطع کړه او ورته وئې ويل چي: دا د يو نابلده او پردي سړي کوټ دئ، ځکه ئې نه اغوندې؟!

شاپېرۍ غوندي ښايسته حسن جهاني په شرمناکه او عاجزانه ډول ورته وويل چي خبره دا نه ده بلکي مطلب مي دا دئ که زه دا کوټ واغوندم نو ستا به يخ وسي.

شوخي او شريري ستارې وخندل او داسي ئې وويل: الله الله ! همدا اوس ئې بيا داسي فکر او غم ورپيدا سو!

حسن جهانه وشرمېدله او خيالي سترگي ئې کښته واچولې او په لږ موسکا او شرمندوکي کاته سره ئې ستارې ته داسي وويل:

ته خو خپلي شيطانۍ او شوخۍ نه

پر بېردې.

ستاره: په دې کې بیا شوخي چیري ده؟ د ارشد ورور سره خو ستا ډېر فکر دئ او ستا سره هم د ده فکر پیدا سو او ما هم صرف همدا وویل، نو دا خو حقیقت دئ!

حسن جهانه: ښه، ښه... زه پوهېږم چې ستا کست راکېږي.

ستاره: کست؟ ولي محترمي؟ کست! یو څه خو راته وګوره، ولي مي باید کست دربانديوسي؟

حسن جهانه: د خپل زړه څخه دي وپوښته.

ستاره: زه خو پاکه صافه او زړه مي هم همداسي دئ. زما ستا غوندي د خبرو جوړول زده نه دي.

ارشد: دا خبري وروسته هم کولای سی، اوس لطفاً دا کوټ واخله او وايې غونده.

ستاره: هو، هو، واخله او وايې غونده!

حسن جهاني په ډېر نزاکت سره د ستارې او ارشد په مرسته هماغه کوټ واغوست. دا لومړی ځل وو چي د ارشد لاس د ښکلي حسن جهانې د ګل غوندي نازک او سوځوونکي بدن سره په تماس کي سو. دا چي دا وخت به د ارشد د زړه څه حال وو او څونه خوند به ئې اخیستی وي صرف د ده زړه خبر و او بس.

کله چي حسن جهاني د کوټ غوټې وتړلې، نو څېره ئې نوره هم روښانه او زړه وړونکې سوه. ارشد هغې ته په کتو سره بېتابه سو خو ځان ئې ټېنګ کړ. ستارې وویل: ګوره، ستا په باره کي د ارشد ورور دومره سودا بنده وه او د یخنۍ څخه یې ستا څومره ښه بندوبست وکړ.

حسن جهاني غوښته چي څه ووایي، خو اشرف د هغوی مخته د تېرېدو پر مهال ژر خپل کوټ وکیښ او ستارې ته ئې ونیو او داسي ئې ورته وویل: د ارشد ورور سره یو کوټ وو چي حسن جهاني ته ئې ورکړ، دا دئ زما سره هم یو کوټ سته چي تا ته ئې درکوم. واخله او وايې غونده.

حسن جهاني وخندل. ستاره یو څه وشرمېدله خو ډېره بیداره او شوخ مزاجه نجلۍ وه او داسي یې وویل: ښه ـ ښه، غواړې چي پر ما باندي مهرباني وکړې؟!

اشرف په سنجیدګۍ سره ځواب ورکړ چي په دې کي خو د لطف او مهربانۍ هیڅ خبره نسته، بلکي زموږ مسئولیت دئ چي خپل ملګري په آرامۍ او هوسایۍ سره ورسوو.

ستارې د کوټ اخیستلو پر مهال داسي وویل: ښه خبره ده، ستا څخه ډېره ډېره مننه.

حسن جهاني وخندل او داسي ئې وویل: تشکر او منني ته ضرورت نسته، د ده سره ستا تشویش دئ او خپل کوټ ئې وکیښ او تا ته ئې درکړ.

ستارې هم د کوټ اغوستلو پر مهال ورته وویل چي زه ستا غوندي ناشکره نه یم. ده خو زما سره احسان وکړ، نو آیا تشکر لا هم ورڅخه و نه کړم؟!

حسن جهانه: پر تا باندی چا احسان وکړ؟

ستاره: نوم ئې زما زده نه دئ.

حسن جهانه: د یو چا څخه ئې وپوښته، آخر په نوم خو ئې باید یاد کړې.

ستاره: ښه ـ ښه! نن خو بیداره او ډېره مسخراچي سوې یې!

جسن جهانه: خو نوم ئې وپوښته! آیا په نامه ئې باید و نه بولې؟

ستاره: زه د چا احسان نه هېروم.

حسن جهانه: نور څه خو نه کوې بلکي صرف د نوم پوښتنه ئې وکړه.

ستاره: لطفاً دا مهرباني ته په خپله وکړه.

حسن جهاني هم اشرف ته مخ واړاوه او داسي ئې ورڅخه وپوښتل: آيا د مهرباني له مخي به خپل نوم را او نه ښيې؟

اشرف هم ټوکي او ظريف الطبع انسان وو او داسي ئې ورته وويل: آيا غواړې چي زما نوم زده کړې؟

حسن جهاني په خندا سره ورته وويل چي زه ئې د خپلي خور له پاره پوښتم.

اشرف: هغه ئې خپله راڅخه پوښتلای سي.

حسن جهانه: هغه ستا څخه شرمېږي.

اشرف: نو چي داسي ده زه هم د خپل نوم د ورښودلو څخه شرمېږم.

حسن جهاني وخندل او ستارې ته یې مخ واړاوه او داسي ئې ورته وويل: اوس نو پوه سوې؟ ما خو خپل کوښښ وکړ لاکن دی ئې نه راښيي. نو که ئې ته په خپله ورڅخه وپوښتې حتماً ئې درښيي.

ستاره: ولي ئې بايد ما ته راوښيي؟

حسن جهانه: ته خو ئې څني وپوښته!

ستاره: څنگه؟ هغه خو د خپل نوم په ښودلو شرمېږي.

اشرف: نه داسي نه ده، بلکي يوې پېغلي ته د خپل نوم د ښوولو جرئت نه سم کولای.

حسن جهانئ بیا وخندل او داسي ئې وويل: پيغله! يوازي پېغلي ته نه، بلکي يوې ښکلي پيغلي ته د خپل نوم د ښودلو جرأت واقعاً هم مشکل وي.

اشرف په خندا سره وويل چي هو، همدا خبره خو ده.

ستارې وخندل او ورڅخه وئې پوښتل چي داسي ده، نو د جنگ په ميدان کي څنگه جنگېږې؟

اشرف: زه د ځان صفت نه کوم، خو دومره به وواېم چي کله مي د «تل» په جبهه کي د نادرخان تر قوماندې لاندي جگړې ته ودانگل، نو دوست او دښمن دواړو زما ستاینه کوله. همدا اوس هم د هر څومره زړه ور او غښتلي پوځي سره بې له کومي ببري څخه ډغري وهلای سم، د زمري خوله په منگلو څيرلای سم، خو دا ټوله دلاوري مي د يوې ښکلي پېغلي په وړاندي صفر ده.

ستارې په خندا سره وويل چي: ښه، ته خو زړه ور هم يې، غيرتي هم يې لاکن دا مهال صرف نوم درڅخه پوښتم.

اشرف: زما نوم اشرف دئ، آيا ستا نوم پوښتلای سم؟

حسن جهاني په ډکه خوله خندا ورته وويل چي: هو، ولي نه.

ستارې وخندل او هغې ته ئې وويل چي گراني! دی ستا د نوم پوښتنه نه کوي او ته ناحقه په منځ کي راولوېدې.

حسن جهانه: ما خو ستا له خوا دا خبره وکړه.

ستاره: ستا د يادوني ضرورت نسته.

حسن جهانه: چي داسي ده نو خپل نوم وروښيه.

ستاره: نجوني خپل نوم چا ته نه وايي.

حسن جهانه: زه يې ور وښيم؟

ستاره: ته څه حق لرې؟

اشرف: خبره خو دا ده چي زه اصلاً د دې لايق نه يم چي يو څوک خپل نوم راوښيي.

ستاره: دا ښه نه دئ، زه د نوم ښوول هيڅ ضروري نه گڼم.

اشرف: ډېر ښه، د بل د نوم پوښتل صحيح دي خو خپل نوم ورښوول صحيح نه دي؟ نو مهرباني وکړه ژر خپل نوم راوښيه. اشرف په داسي نظر سره ستارې ته وکتل چي

هغه بې طاقته سوه او بې له ځنډه يې ورته وويل چې زما نوم ستاره دئ.
اشرف: ستاره... يا د حُسن ستاره.
ستارې وخندل او وئې ويل چې هر څنګه ئې لازم بولې هغه صحيح دئ.
اشرف غوښته چې يو څه ووايي چې نابېره د توپک د ټک ږغ واوربدل سو او ټول يو دم لکه د خوبه داسي راوغورځېدل. دا هغه ځای وو چې سيدحسن شيرخان پکښي زخمي کړی وو. دلته د لاري پر دواړو خواوو د غرونو جګو څوکو د آسمان سره خبري کولې. شا وخوا غټي او ګڼي ونې ولاړې وې. که څه هم سپوږمۍ راختلې وه خو د واوري اوربدو له امله صافه نه ښکارېده بلکي پيکه او خيره معلومېده. شاوخوا هم هر څه صاف او ځرګند نه ښکاره کېدل. ارشد مخ اشرف ته واړاوه او ورته ويې ويل چې داسي معلومېږي لکه غلو چي ټک وکړ.
اشرف: هو، ښايي له ليري ئې ټک کړی وي.
د هغوی همدا خبري اتري رواني وې چې ږغونه او ږوږ واورېدل سول. اشرف وويل چې ښايي دغو بدبختو غلو پر کومه بله قافله باندي حمله کړې وي.
اشرف: هو همداسي خو معلومېږي. ته غوږ ونيسه د ښځو او کوچنيانو چيغي هم اورېدل کېږي. راځه چي په ځغستا ورسو او هغه بېچاره مظلومان ورڅخه وژغورو.
ارشد: هو، درځه چې ورځغلو.
هغوی پر آسونو سپاره سول او په چارنالو ئې وځغلول. وفاداره اسونه هم د ږغونو خوا ته په تاخت سول. د مرميو آوازونه وار په وار ډېرېدل. د نارو او فريادونو ږغونه هم ورسره زياتېدل. اشرف مخ ارشد ته واړاوه او ورته ويې ويل چې اشرفه! ژر ژر درځه، خدای دي دغه غله تباه او برباد کړي چي د دې ټولي سيمي امنيت ئې خراب او له منځه وړی دئ.
اشرف: که زما خبره منې، او خپل پوځيان راسره بوزو، پر بچه سقاو او د هغه پر ډله ټپله نابېره حمله وکړو، نو ډاډ درکوم چې ټوله به ونيسو او امن و امان به رامنځته سي.
ارشد: مخکي زه بېرېدم چې مبادا هغوی و نه تښتي. خير، هغه وخت خو راڅخه تېر سو لاکن اوس به....
د ارشد خبره لا پای ته نه وه رسېدلې چې يوه مرمۍ را ورسېده او د ده څنګ ته تېره سوه. اشرف وويل چې بايد جداً متوجه اوسو، غله حتماً زموږ په راتګ خبر سوي دي.
ارشد: هو بېشکه، وګوره مخامخ هغه دي د خلکو صورتونه هم لږ لږ معلومېږي.
دوی خپل آسونه نور هم تيز کړل او ډېر ژر د پېښي ځای ته ورسېدل. هلته ئې وليده چي غلو پر يوه کوچنۍ قافله حمله کړې ده. دوی هم بې له ځنډه پر غلو حمله پسي وکړه. غلو هم په زړه ورتوب سره متقابل ګوزارونه شروع کړل. د دواړو خواوو څخه مرمۍ اورېدلې او د اور باران روان وو. ارشد په قهر سره ناره کړه چي غله ټوله د څلورو خواوو څخه محاصره او له منځه يوسئ.
يو غل مخته راغی او خپل توپک ئې ارشد ته ونيو او ټک يې پر وکړ. مرمۍ د ده اوږه يو څه ونيوله او ورڅخه تېره سوه. ارشد هم بې له ځنډه پر هغه باندی فير وکړ، ويې ويشت او ځای پر ځای ئې وواژه.
په دې سره غله ټول وبيرېدل. مشر ئې په يوه نامعلومه لهجه سره خپلو انډيوالانو ته څه هدايات ورکړل. د دې سره سم غله ټوله پر شا سول او وتښتېدل. ارشد او ملګرو ئې هغوی

تعقیب کړل او د شا له خوا ئې آسونه پسي ځغلول.

ښکلي او سپین مخې نجوني یعني حسن جهانه او ستاره یو څه گوښه د څو پوځیانو په منځ کي ولاړي وې او د دې هر څه ننداره ئې کوله.

د توپکو د بارودو دود د سپوږمۍ د پیکه او خیره رڼا سره مل سو او داسي ښکاره کېدی لکه پر ټوله سیمه چي یو تور څادر غوړېدلی وي. هیچا هم څه شي په سترگو نه سو لیدلای خو د مرمیو آوازونه راتلل. لږ گړی وروسته د نارو او چیغو ږغونه یو څه لږ سول بلکي یوازي د توپکو ږغونه اورېدل کېدل.

ارشد او اشرف خپلو ملگرو ته مسلسل جرأت ورکاوه او همداسي مخته پسي تلل. غله د غټو غټو گارو شا ته پټ سول او مرمۍ ئې ویشتلې. هغوی د لویو ډبرو په سایه کي نه معلومېدل. خو ارشد او ملگري ئې پر سپین ډاگ ورته ولاړ ول او بیا ئې هم پرله پسې په غیرت او شجاعت سره فیرونه پر کول.

ارشد او اشرف چي دا حال ولید نو یو څه را شا ته سول. کله چي یو نسبتاً محفوظ ځای ته ورسېدل او د هغه ځایه ئې ځانونه غلو ته ور نږدې کړل. دواړه یو غار ته ننوتل او له هغه ځایه ئې پر غلو سخته حمله پیل کړه. یو غل دوی ته نږدې مورچل بندي وو. دوی د سپوږمۍ په خفیفه رڼا کي هغه ولیدی او وئې پېژندی چي غل دئ. هو، دا په خپله بچه سقاو وو. ارشد په ډېر تلوار فیر پر وکړ او مرمۍ ئې پر اوږه ولگېده. هغه لویه ناره وکړه او وتښتېد. په همدې تیښته کي ئې وویل چي سیدو! پر شا ځغله چي بدبخته ارشد راورسېدی.

په دې سره ټوله غله پر شا ولاړل. ارشد او اشرف د شا له خوا هغوی تعقیب کړل. هغوی یوې درې ته ننوتل او هلته ورک سول. دوی دواړه هم څه گړی وروسته بیرته راوگرځېدل او راغلل.

کله چي د بارودو دود لږ سو، نو ارشد ولیده چي دا د پنځلسو شلو کسانو یوه کوچنۍ قافله ده چي غلو حمله پر کړې وه. په دې قافله کي دوې درې ښځې، څلور پنځه کوچنیان او پنځلس شپاړس نارینه شامل ول. ښځې او ماشومان ډېر بېرېدلي ول. یو پوخ سنه سړی کرار د ارشد خوا ته راغی او ورته وئې ویل چي تاسي ډېر ښه وخت راورسېداست. موږ ستاسو ډېر ممنون او مشکور یو.

ارشد: د تشکر ضرورت نسته، آیا په تاسو کي خو به چا ته ضرر نه وي رسېدلی؟

هماغه شخص: خدای هر څه سم کړل. که تاسو یو څه ناوخته رارسېدلي وای، نو حتماً به ئې لوټولو.

ارشد: د دې بدبختو غلو کومه مرمۍ خو به په تاسو کي پر چا نه وي لگېدلې؟

هغه شخص: یا، اول هغوی هوایي فیرونه کول. خو کله چي موږ نه ورته تسلیمېدو، نو ځکه جنگ شروع سو او په همدې وخت کي تاسي راورسېدلاست. ځکه نو هغوی وبېرېدل او وتښتېدل.

ارشد: خدای ډېر لوی فضل وکړ. ښه، اوس تاسي خپل کسان راغونډ کړئ او له دې ځایه ژر روان سئ.

هماغه شخص: زموږ ټوله کسان راغونډ سوي دي. نو هغه وو چي دا ټول کسان مخ پر جبل سراج روان سول.

نور بیا ...



لیکوال: علامه حبیبي
مترجم: مطیع الله روهیال



# یوه میاشت د صادق هدایت سره

د ۱۳۲۵ش کال په ژمي کې مې د ادبیاتو د فاکولتې د لومړي رئیس په توګه کار کاوه. یوه ورځ د هغه مهال د معارف وزیر په بوستان سرای کې (چیرې چې امیر عبدالرحمن خان ښخ دئ) امر وکړ، چې د افغانستان په نمایندګۍ دې درې تنه د تاشکند پوهنتون په پنځویشتمه کلیزه کې چې په هغه هیواد کې جوړېږي ګډون وکې. له دغو درو تنو څخه یو زه، دوهم ډاکټر محمدانس او دریم هغه ئې اروابناد سرور ګویا وو.

زموږ سفر ډېر ژر پیل سو، ځکه چې د غونډې جوړېدو ته فقط دوې ورځې پاته وې او موږ مجبوره وو چې د ژمي په هغو سړو ورځو کې د هندوکش له واورو او آمو تر رود تېر سو. تر هغه وروسته د ترمذ له تاریخي ښار څخه چې د آمو په شمال کې واقع دئ د شاش (د تاشکند پخوانی نوم) پر لور پرواز وکو.

هغه مهال زموږ په هیواد کې پخې او قیر سوې لارې نه وې. له واورو او خټو څخه ډکې کږې وږې لارې مو په دښتونو، غرونو او د غرو په لمنو کې ووهلې. څو واري مو موټر په خټو کې بند سو، آخر د شپې مزار شریفي



ته ورسېدو. شپه مو په
هغه ښار کي تېره کړه او
سهار وختي مو دوباره
سفر شرو کړ. لیکن زموږ
کوچنی تېزرفتاره موټر
نور په ختو کي نه سوای
تللای او له رفتاره
ولوېدی.

له ناچاري ځخه ئې
درې ګاډې په قوي آسانو
پوري وتړلې او موږ هر یو
ئې په جلا جلا ګاډیو کي
سپاره کړو. ګاډیو د آسانو
په ذریعه حرکت شرو کړ
او آسانو په خورا تېزي و
چابکي په ځغاسته پیل
وکړ. د ورځي نیمایي ته د
"سیاه ګرد" ښارګوټي ته
چي د افغانستان سره
سرحد لري ورسېدو. له
ختو او لې ځخه راووتو او
رېګستان مو په خوله ورکړ. دا مهال د ګاډیو
اربې په رېګو ننوتلې او اسان ئې له کشولو
ځخه عاجزه سول. له ګاډیو ځخه را کښته
سولو او پر نوو آسانو سپاره سوو. زموږ و مخ ته
قوي او غښتلي آس وانان. پرآسانو
کښېنستل. موږ چي پر آسانو باندي د
ناستي عادت نه لاره، مجبوره سوو چي په
خپلو دسملانو په دوی پوري ځانونه بسته
کړو. هغوی په خورا تېزي سره د تاشګذر پر
خوا چي هغه مهال له آمو رود ځخه د تېرېدو
لاره وه، بوتلو.

ځوک چي پر آس باندي د سپرېدو
عادت نه لري، په خاص ډول هغه کسان چي
ټول عمر ئې د مېز تر شا په قلم چلولو او
میرزایي تېر کړی وي، که چیري د دغه ډول
ازمویني سره مخامخ سي، ذ دې قید په لرلو
سره چي له سهاره ځخه تر ماښامه پوري باید
هدف ته ځان ورسوي، نو حتماً حوصله
بایلي او د مبارزې روحیه له لاسه ورکوي.

سترې ستومانه په وچ یخ کي تاشګذر
ته ورسېدو. له نېکه مرغه د آمو رود په ځنګ

کي یوه تاوده اطاق موږ ته ښه راغلاست ووایه. له ډېري ستړیا څخه په درانه خوب بیده سوو. سهار وختي د ګازي کښتۍ په ذریعه چي زموږ کوربه وو د آمو ساحل ته را استولې وه سپاره سوو. آمو زموږ او د شوروي تر منځ ګډه پوله ده. زموږ په منځ کي د مرحوم ګویا غوندي شعرپېژاند وو، هغه مرحوم پر آمو باندي د سلطان محمود غزنوي د پُل تړلو او پر دې لوی رود باندي د دغه پله په ذریعه د تېرېدونکو کیسه د شعر په ژبه د فرخي سیستاني له خولې کوله:

"بر آب جیحون پل بستن و گذاره شدن
بزرگ معـجزه یی باشــد و قوی برهان
سکــندر آنکه کــز چین همی فرود آمد
بماند بر لب جیحـون سه مـاه تابستان
ملک به وقتی کــز آب رود جیـحون بود
چو آسمان که مـر اورا پدید نیست کران
بر آب جیحون به هفته یی یکی پل بست
چنان که گفتی کز دیر باز بود چنان ..."

د صابر ترمذي ادیب د غرقېدو داستان مو هم یو بل ته سره وکړ، چي په همدغو اوبو کي چي زموږ کښتۍ پر روانه وه غرق سوی وو. په دغه حال کي تر دریاب واوښتو او شکر مو ادا کړ چي د صابر په سر نوشت اخته نه سوو.

له کښتۍ څخه راکښته سوو او د دریاب پر راسته ژۍ روان سوو. دا د ترمذ خاوره وه. هغه خاوره چي د فرهنګ، تمدن او د منځنۍ آسیا د لویو عالمانو او ادیبانو داستانونه ورسره تړلي دي. د دې خاوري پر هسک باندي د حکیم ترمذي، محدث ترمذي، ابوبکر وراق ترمذي او داسي نورو نومونه ځلېږي.

زموږ کوربه په ډېر تلوار موږ هوايي ډګر ته بوتلو او له هغه ځایه مو د تاشکند پر لور پرواز وکړ.

هوا یخه وه او لږ لږ واوره هم اورېده. د تاشکند پوهنتون مېلمه پالو موږ په ښار کي یوه مېلمستون ته بوتلو چي لاره ئې لکه د مزار شریفي په لی او ختو لړلې وه. هغه وخت دوهم نړۍ وال جنګ جریان لاره، د شوروي خلکو خپل ټول همت او کوښښ د دې جنګ د کامیابۍ او بریا سره تړلی وو. نارینه او ښځو ئې تور ساده کالي اغوستي ول او په دې چاره کي وه چي متجاوزین له خپلي خاوري وشړي.

په دغه ورځ درې ایراني مېلمانه هم مېلمستون ته راورسېدل. یو له دغو مېلمنو څخه د ایران مشهور لیکوال صادق هدایت وو. بل ایرانی مېلمه دکتور کشاورز نومېدی، چي د ایران د توده حزب غړی وو. که څه هم نوموړي په فرانسه کي د کوچنیانو د ناروغیو په برخه کي تحصیل کړی وو، خو په سیاست کي ئې لوی لاس لاره. منتقد، اور ژبی او روک سړی وو. په روسي ژبه ئې رواني خبري کولې او د ایران پر شاهي نظام ئې سخت انتقادونه کول. د شاه په غندنه کي ئې د شاهنامې پر وزن برابر بیتونه د خولې ورد وه. دریم مېلمه دکتور علي اکبر سیاسي وو. نوموړی درباري سیاستمدار او دانشمند سړی وو. دوکتور سیاسي په فرانسه کي د اروپوهني په برخه کي تحصیلات کړي ول. هغه مهال د معارف وزیر او د تهران پوهنتون رئیس وو. هغه

متفکر، آرام او هوښیار سړی وو، چې د ایران له حکومت څخه ئې دفاع کوله او همېشه به ئې د خپلو دوو نورو ملګرو سره لفظي شخړه وه.

صادق هدایت چې یوه میاشت مې په دغه مېلمستون کې ورسره تېره کړه، ډنګر او میانه ځوان وو. برابر اندامونه، ښکلې، سپېڅلې او مینه ناکه څېره ئې لرله. تور کالي ئې اغوستل. د سر وړښتان ئې ډېر تور او کوچني بر پتونه ئې ول.

هدایت د دوکتور کشاورز سره دوستانه اړیکې او فکري نژدېوالی لاره. دکتور کشاورز فعال او کوښښي وو خو هدایت د نظر سړی وو. یعني لومړی عملي وو دوهم ئې نظري.

په مېلمستون کې هر یوه ځانته اطاق لاره اما سالون او د ډوډۍ خوړلو مېز مو ګډ وو. یوې پخې مېرمنې چې موږ به "ام الکواعب" بلله د دوو ښایستو او اخلاقي نجونو سره زموږ خدمت کاوه. دکتور کشاورز چې په روسي پوهېدی غالباً به ئې زموږ ترجماني کوله، کله کله به ئې د دغو دوو ښایستو سره ټوکې او شوخ طبعي هم کوله.

ګویا اعتمادي په هغه لومړۍ ورځ په دې وپوهېدی، چې د صادق هدایت، دوکتور کشاورز او دوکتور سیاسي چې د دولت نماینده دئ، تر منځ خورا سخت اختلاف وجود لري. کله چې به په سالون کې سره کښېنستلو یا به د ډوډۍ خوړلو پر مېز سره را یوځای سوو، مرحوم ګویا اعتمادي به د ایران د اوضاع په باب له دوکتور سیاسي څخه یو څه پوښتل. هغه به په خبرو پیل وکړ او د ایران د پرمختګ او پېشرفت په باب به ږغېدی او دې نورو دوو به هغه څه چې دوکتور سیاسي ویل ډېر ژر ور ردول، کله کله به ئې د طنز او طعنې په ډول ورغبر ګوله، موږ به په ډېره دلچسپې د دې لفظي شخړې تماشا کوله.

هدایت مې یو بدبینه سړی په نظر راغی، چې د ژوند سره ئې چندان زړه نه وو تړلی. سهار وختي مخکې تر سباناري به ئې شراب چښل، تر دې وروسته به هم که موقع میسره سوې وای بیا بیا ئې چښل. که به چا د پند په ډول ورته ویل، چې:

– ځوانه! داسي نه وي چې روغتیا ته دې تاوان ورسوي.

په جواب کې به ئې ویل:

– آغا! ژوند ارزښت نه لري، په دونه قید او پرهېز نه ارزي. زما تر کمیت کیفیت ډېر خوښ دئ.

تر دې اندازې آزاد وو، چې کله کله به ئې داسي خبري تر خولې راوتلې، که چیري یوه آخوند هغه اورېدلي وای یقیناً به ئې د هغه پر الحاد او عقیدوي فساد فتوا ورکړې وای.

هدایت د خپلو ازادو او انتقادي لیکنو او ادبي تخلیقاتو په وجه ډېر مشهور دئ. کتابونه ئې په اروپایي ژبو هم ترجمه سوي دي. زه چې د داستان لیکلو د هنر سره ډېر آشنا نه یم، نو په دې عرصه کې د ده د هنر لکه څنګه چې ښایي هغه ډول ارزیابي نه سم کولای، ولي ویلای سم چې: د خیام پر رباعیاتو چې ئې کومه انتقادي مقدمه لیکلې ده (د دغه کتاب یوه نسخه ئې د یادګار په

ډول ما ته راکړه)، د ادبي انتقاد او آزاد فکرۍ له نظره ډېر ارزښت لري، او کېدای سي چې د نوموړي (صادق هدایت) د فکر په پېژندلو کي ډېر مؤثر تمام سي. صادق هدایت د دین او مذهب سره کوم خاص اړیکی نه لاره، کله کله به ئې د ټوکو په ډول ډېر هېښوونکي مسائل مطرح کول.

د مېلمستون تشناب مو سره ګډ وو. کله کله به موږ افغاني او ایراني مېلمانه د نوبت تر لاسه کولو له پاره د تشناب دروازې ته په لین درېدلو. زه دا عادت لرم چي ډېر سهار وختي تر لمر راختلو مخکي له خوبه راویښېږم. یوه ورځ په تشناب کي په غسل کولو مصروف وم او هدایت دباندي د تشناب له دروازې سره نژدې د انتظار پر چوکۍ ناست وو. داسي فکر کوم چي د سر او بدن د پرېوللو پر مهال مي د کوچنیوالي د عادت سره سم کلمه شهادت ویله. کله چي له تشنابه راووتم، هدایت د ټوکو په ډول راته وویل:

– احسنت، احسنت! په ښه تکبیر و تهلیل سره دي ځان پرېولی. ستا څخه مي دا هیله نه درلوده. داخوندانو په ډول دي آذان کاوه.

ما ورته وویل: کله کله د عادت له مخي...

زما خبره ئې راپرې کړه او نور څه ئې راته وویل.

یوه ورځ د دوکتور کشاورز او دوکتور سیاسي تر منځ د پوهنتون د استادۍ پر سر جروبحث شروع سو. دوکتور سیاسي و کشاورز ته وویل:

– تاسي خو د پوهنتون استاد نه یاست. نو ولي هر ځای ځان د پوهنتون استاد معرفي کوې؟

هدایت په داسي حال کي چي په برېتو کي ئې خندله، په نرم او آرام ږغ سره وویل:

– څه پروا؟ تاسي هم استاد یاست سیاسي!

منظور ئې دا وو، چي دوکتور سیاسي هم د سیاست له لاري دې مقام ته رسېدلی دئ.

صادق هدایت ډېر نګر بدن او آرام کړه وړه درلوده. خو د حریف سره ئې د مقابلې په وخت کي هیڅکله ځان نه بایله او په جد و هزل سره ئې مقابل طرف ته جواب ورکاوه. هیڅکله مي عصباني و نه لیدی.

یوه شپه چي سپوږمۍ په آسمان کي ځلېدله، موږ ئې د تاشکند رصدګاه ته بوتلو. هورې ئې په مخکه کي یو ژور څاه کېندلی وو. د اوسپني زینه ئې ورکښته کړې وه او د برېښنا په واسطه ئې روښانه کړی وو.

زموږ مېلمه پال وویل:

– د دغه څاه په تل کي چي سل متره ژوروالی لري، یو ډېر دقیق ساعت ځای پر ځای سوی دئ. دغه ساعت د ثانیو اعشار او ډېري کوچنۍ زماني شېبې راښوولای سي. لیکن د دغه ساعت د لیدلو له پاره باید یو سړی لاندي ورکښته سي. ځکه چي د ډېرو کسانو تنفس د هغه ځای پر هوا باندي اغېز کوي. د هغه ځای هوا باید ثابته وساتله سي. اوس چي هر څوک غواړي، کولای سي د زینې په واسطه ورکښته سي.

مېلمنو په ډېر حیرت سره د څاه ژوروالي ته وکتل. هلته کښته کېده او

راپورته کېده ډېر تکليفي په نظر ورغله.

دوکتور کشاورز وويل:

– په تهران کي ما ته ډېر ضرورت سته. هم په ګوند کي او هم د کوچنيانو په روغتون کي ما ته ډېره اړتيا ده. زه فکر نه کوم چې له دې کندې څخه دي ژوندی راووزم.

دوکتور سياسي وويل:

– دې ځاه ته ورکښته کېده کېده کېدای سي د اروا پوهني له نظره زما پر اروا باندي بده اغېزه ولري.

ګويا وويل:

– دې ځاه ته ورکښته کېده او راپورته کېده دواړه ډېر سخت دي. "چرا عاقل کند کاری که بار آرد پشيمانی؟"

صادق هدايت د يوې نرمي خندا سره وويل:

– ما ته چي ټول عمر د دوو اوربشو په اندازه ارزښت نه لري نو د هغه د ثانيو او لحظو شمېرل څه فايده؟

يوه ورځ ئې موږ د تاشکند لوی مفتي ايشان باباخان ته وروستلو. هغه په خپله مدرسه کي زموږ په خاطر ډېره ښه مېلمستيا کړې وه. زموږ مېلمه پال چي په روسي او اوزبکي ئې خبري کولې، د ترجمان دنده اجراء کوله. په خپله مفتي هم په دري پوهېدی، خو د دې له پاره چي مترجم ئې په خبرو ښه ترا پوه سي، نو به ئې کله په روسي او کله هم په اوزبکي خبري کولې. مفتي صاحب ډېر جالب او برجسته سړی وو. په ديني اموراتو کي ئې پراخه پوه لرله. د اطاق پر دېوالونو ئې د ستالين فرمانونه ليدل کېده.

ژباړن وويل:

– لوی مفتي د خپلي فتوا په زور په زرونو کسان د خپل وطن څخه د دفاع په مقصد د جنګ ميدان ته استولي دي. د دوی مادي او معنوي مرستي د دې سبب سوي دي چي د شوروي رهبري هيئت د رسمي منناليکونو په ذريعه دوی وستايي.

مفتي چي روښانفکره او هوښيار سړی وو، د ځوانانو د ذوق مطابق خبري ئې کولې. ليکن صادق هدايت چي د هغه له آخوندي خبرو څخه ډېر په عذاب سوی وو، مخ ئې تروش نيولی وو. (د استاد حبيبي د عکسونو په منځ کي، د دغه ملاقات عکس موجود دئ او ما ليدلی دئ، ر.ز).

په صادق هدايت کي مي هيڅکله تعجب او ځان ستاينه و نه ليده. خاکساره او بدبينه وو. له خپل او پردي سره ئې په ورين تندي خبري کولې. له درباري او مداح شاعرانو څخه ئې بد راتله. خيام ئې د هغه د روک والي او اور پراندي ژبي له اسيته خوښ وو.

ما ته د دغسي زړو داستانو د نوشته کولو ذوق اوس راپاته نه دئ، خو د شپږدېرشو کلونو دغه زاړه خاطرات مي د ګران ليکوال ښاغلي رهنورد زرياب د ټينګار په وجه وليکل. هغه څه چي زما په ذهن کي وه هغه مي د قلم په ذريعه قيد کړل.

کابل، جمال مېنه
اول قوس ۱۳٦۱

# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

## (د عبدالظاهر څرک په نوم)

شپږم لیک:
۱۷/۱۲/۱۹۹۸م

جناب حاج عبدالظاهر جان السلام علیکم!

روغ او جوړ اوسې! د دوستانو، خپلوانو او کورنۍ سره، خیرات او برکات دې ډېر سه. ستا خط راورسېدی. شکر چې جوړ او روغ یې، خدای دې ژوندی او هوسا لره. کور دې ودان. زما د بې مضمونۍ د عذر د رفع له پاره دې ډېر مضامین را په ګوته کړي دي. اصلاً خبره دا نه ده چې مضمون نشته. سعدي چې وایي:

برګ درختان سبز در نظر هوشیار
هر ورقش دفتریست معرفت کردګار

هم د خدای تعالی حکمتونه محیط دي هم شنې پاڼې تر شمېر زیاتې دي. هغه چې کم دي هوښیاري او د نظر درلودل دي. که دا موجود سي بیا خو نو مضمون هر کله حاضر وي.

یک عمر می توان سخن از زلف یار ګفت
در بند آن مباش که مضمون نه مانده است

خو د زلفو ستایل جلا وخت او بېل ماحول او علیحده حال غواړي. زما پر عمر او زما په وضع کي د تورو وربښمینو زلفو او د سوسي د شخو خیر نو خاشو تر منځ توپیر نه سي کېدای. د دې وخت راغلی دئ چې سړی له خپله سره اور مړ کړي او د مېني د ورانې د بیا ودانولو په سودا کي لا هوسي که څه هم په وس او واک کي ئې هیڅ نه وي (که دا نائې اور له خپله سره مړ کړه). د ګوډ تېمور په دوران کي چې د وینو سیل روان وو، د هنر او ادبیاتو کمبله ټوله او بازار کساد وو. د الامان ږغ تر آسمانه ختلی وو. خو کله چې سوهانه سوه د الغ بېګ او شاهرخ په زمانه کي د سمرقند رصدخانې او د هرات مدرسې منځ ته راغلې. زموږ خو تر اوسه لا چنګیزي دور په مستۍ کي دئ. د تېمور نوبت لا غاړي غاړي ولاړ دئ. هلاکو او منکوقاآن لا د نوبت په انتظار کي ولاړ دي.

۱/ دا به منو چې مسلماني له قرآنه راولاړه سوې ده او قرآن د عامو مسلمانانو د لارښووني له پاره راغلی دئ نه د خاصو اشخاصو له پاره. په دغه نظر چې سړی ورته وګوري نو هر کله دا روښانه لیدای سي چې د انسان مسئولیت شخصي دئ. هر فرد د خپل شخصي ایمان او فردي عمل څخه پوښتل کېږي. د نېکۍ مجری له نقصانه پرته ورکول کېږي او د بدۍ بدل بې افزایشه اخلي (جزاءً وفاقا). د دغه حساب پر وخت نه بدل منل کېږي، نه عوض در پېږي نه فدیه ځای نیسي. د هر سړي قدر او منزلت د هغه په تقوی او عمل پوري تړلی دئ "ولا تزر وازرة وزر اخری". "و ان لیس للانسان الا ما سعی". پر دغه شخصي

او اخلاقي برخه په دوولس کلنو مکي آیاتو کي مکرر اصرار سوی دئ. خو په مدني آیاتو کي چي د قتال رخصت راغلی اصلاً ئې ماهیت دفاعي او تدافعي دئ او د عقیدې او عبادت د آزادۍ د تامین په غرض راغلي دي. په دغه شخصي بڼه کي چي اسلام د فرد او خالق پر رابطه ټینګار کوي د عیسویت او بودائیت سره ډېر شباهت لري او په وارو وارو په قرآن کي و حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته خطاب سوی دئ چي "ته خو پر دوی (کفارو) وکیل او حفیظ نه یې ټاکل سوی ستا ماموریت تبلیغ دئ او بس".

که د اسلام دغه مشخصات په نظر کي ولرو، نو په هغه کي د سیاست ګنجایش ډېر لږ پاتېږي ځکه سیاست د قدرت له کسب څخه نشئت کوي. که هر څه له جائزو لارو څخه ادعا وسي بیا هم و ناجائزو وسائلو ته مراجعه پکښې له امکانه لیري نه وي او سیاست د ذمه وارۍ داوطلبي ده چي د تقوی څخه څه فاصله پیدا کوي، دا خو د مسلمانۍ یو تعبیر دئ.

په بل تعبیر نو کله چي حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم رحلت وکړ، د تدفین مراسم لا بښه نه وه تر سره سوي چي د انصارو یوې ډلي په سقیفه بني ساعده کي غونډه وکړه او د خلافت داعیه ئې د خپلو قربانیو او د مبني د تبښتنانو په نسبت وړاندي کړه. قریشو (مهاجرو) دا خپل حق وباله او د قرابت او نسب پر مبنا ئې تر لاسه کړ. عائله ختم سوه. دا د قدرت لومړۍ شخړه سوه. نور نو چي د اسلام په نامه خلافت راغلی دئ تر یومنا هذا پوري د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه تر انتصابي او د حضرت عمر ابن عبدالعزیز اموي خلیفه تر میراثي خلافت پرته هیڅ دور بې اختلافاتو او بې شخړو منځ ته نه دئ راغلی. حضرت عمر فاروق رضی الله عنه هم بالاخره د مسلمان په لاس شهید سو او د حضرت عمر ثاني د حکم دوره ډېره لنډه وه. که زه دغه جریانات بې طرفانه وڅېړم بېر بېرم چي ځوک مي د سلمان رشدي او تسنیمه نسرین په قطار کي ودروي.

که څه هم د اوښانو په بېګار کي د ګیدړانو بېول نابابه دي. له هوغه زمانې څخه چي هر څه رابېلېږي، د تقوی، تزکیه نفس او ایثار ځای امر بالعمروف او نهی عن المنکر ډکوي، هغه هم په زور او په خپل تعبیر. ځکه چي په دغه کي د نفس رضی، بابائي او آمریت نغښتی دئ او خوندور دئ او ډېر ځله ئې هغه ځوک کوي چي د خدای تعالی دغه خطاب "اتامرون الناس بالبر و تنسون انفسکم" ورته راجع دئ.

که څه هم ماهیتاً اسلام یو دئ خو دغه دوه ډوله تعبیر ئې موجود دئ او اخوانیت د دغه دوهم مکتب پیروي کوي. دغه به نو ستا د لومړۍ پوښتني جواب وګڼم.

خو تا د هغه سوال په دوام کي دا هم لیکلي دي چي د سیاسي مذهب لوبه به کله پرنګیانو هم کول. په خپلو ګوډاګیانو به ئې مذهبي ختي واغوستې، پیران او مرشدان به ئې ځني جوړ کړه، خو هغه به هر کله رسوا کېدل. آیا د دوی مقصد له دغه کار څخه څه وو؟ د هغو چي څه اصلي مطالب وه هغه به په خپله دوی ته او خدای تعالی ته معلوم وي، بل ځوک که څه وایي یا ئې لیکي نو هغه به ګومان او قیاس وي خو که موږ پسله وخته د کرنیل Laurence of Arabia کارنامې ګورو. هغه ناکامه سوی نه دئ، له عربي نشنلیزم څخه ئې ګټه اخیستې او شریف حسین ئې په عربستان، عراق، اردن او مضافاتو کي د نسب په سلسله د ترکي اسلامي خلافت سره وجنګاوه. د ترکانو د خلافت لاس ئې له دې مځکو څخه ورلنډ کړ او د انګرېز لاس ئې ورخوشي کړ. په ظاهر کي عربي قومي

حکومت او په حقیقت کې د پرنګي نیابت او تحت الحمایه ګي ئې تاسیس کړ. وروسته ئې چپنه لو په نظر ورغله، عبدالعزیز آل سعود ئې په عربستان کې و شریف حسین ته راپورته کړ. په عربستان کي ئې بېل عربي او وهابي حکومت جوړ کړ. تر دغه وخته خو لا د دغه عمل ګټه لومړی انګرېزانو او په وروسته کي امریکایانو د هغو سره په ګډه وخوړله. کله چې عربستان بېل سو، عراق او شرق اردن د هاشمي خاندان (د شریف حسین اولاده) په برخه ورغله، عربستان سعودي د سعودي کورنۍ په پچه وخوت. عراق د مرحوم عبدالکریم قاسم په وخت کي د پرنګي او هاشمي تسلط څخه وژغورل سو، چي دا دئ ناخوالي ئې تر اوسه صدام حسین ګالي او پر اردن چي ملک حسین حکومت کوي دی د شریف حسین ځلرم وارث دئ چي دا دئ په وفاداري کي ئې کمبود نه دئ راغلی او د سرطان د ناروغۍ سره سره له شفاخانې راوزي او د فلسطین او یهودو د جوړي ماموریت ته حاضر یږي. تر دغه نژدې وختو پوري لا په عربستان کي Philip په عربي تلفظ فلبي د مسلمانۍ په نامه عبدالله سره، عبدالله فلبي بدل کېدی او د عربستان د چارو اصلي واکدار همدغه عبدالله فلبي وو. تر څو هغه مړ سو، په ظاهره ئې بل نائب نه ښکاري. خو د عبدالعزیز آل سعود لس ګوني زامن چي د مرحوم شیخ صاحب په روایت ئې امیر عبدالعزیز آل ته د یوه حج د مراسمو په ترڅ کي د پنځو زامنو د زېږېدو له بابته د مبارکۍ پیغامونه راورسېدل. د لونړو ذکر ئې نسته، خدای خبر مېرمني به ئې لا څو وې؟

اوس نو د هغه په لسګونو زامن او په سوو لمسیان خپله خپله وظیفه پېژني او د هدایت مطابق عمل کوي. مځکه د دوی ده، تېل د دوی دي، واک ئې د امریکائیانو دئ او د تېلو نرخ په هغو اړه لري او ماحصل ئې د هغو په بانکو کي ساتل کېږي، مصرف ئې هم د هغو د پلان تابع وي. یو سنت ئې نه سي ګرانولای. همدا شان په اردن کي یو بل پرنګی نائب السلطنه وو. د ګلوب پاشا په نامه چي په وروستني انقلاباتو کي د هغه وجود نور لازم نه وو او انګلستان ته په اعزاز وروغوښتل سو، څو کاله وراندي مړ سو او په مرګ ئې هم تجلیل او تقدیر وسو.

زه پوه نه سوم چي ستا مطالبه له رسوائي څخه څه ده؟ او نه پوهېږم چي تر موجودي وضع بالا به انګرېزانو له خپل کرنیل لارنس او بعداً له عبدالله فلبي څخه څه معجزې غوښتې؟ او هغو ته څه تاوان اوښتی دئ؟ که ته وایې اوس لارنس خپله نسته، نو اوس خو ضرورت بل ډول رفع کېږي.

دغه د سیاسي اسلام څخه یو ډول ناروا ګټه اخیستل دي او اخوانیت که څه هم له سیاسي اسلام څخه استفاده کوي اراده ئې اسلام ته ضرر رسول نه دي او نه هم و بېګانه ته ګټه اړول دي. بلکي غواړي ځان ته قدرت وګټي. هغه په انحصاري توګه استعمال کړي او په هغه اولس چي دوی حکومت کول غواړي له هغو څخه ئې په پټو سترګو او له استدلال پرته د اتباع تفاضلي لري او که څوک و دغو خبرو ته غاړه نه کښېږدي د تکفیر او بغاوت په توره ئې وهي. پر خپل هر هغه جنګ چي د واک لاسته راوړلو په منظور ئې کوي د جهاد فی سبیل الله نوم ایږدي که څه هم د جهاد د اړخه هر چیري "باموالکم و انفسکم" صراحت لري خو د دوی جهاد "باموال اتباعهم و انفس غیرهم" چلېږي. ویني به د بل تویېږي حکم په د دوی جاري وي. حضرت عمر رضي الله عنه که د مریې سره په اوښ پېرېدلو کي نوبت

اینښی وو خو د دې زمانې خلیفه ګان د پیاده پښو پلې سفرونه او د هغه لوی ثوابونه و نورو ته پرېږدي خو په پخپله باید په آخرین ماډل ضد مرمۍ تېز رفتار کي کښېني، دا که په هر څو له فرانسې څخه راځي د اسلام شان او شوکت او دبدبه لوړه ساتي. دا ستا د پوښتني دوهم جزء وو.

د اخوانیت د سیاسي اسلام په باب چي دغه مختصر ته په خپله نور ځېړلای سې او د هغې لومړۍ پوښتني په دریم جزء کي دي پوښتنه کړې ده چي: آیا اخوانیت د سید جمال الدین مکتب نه دئ؟ او آیا هغه په نړۍ کي یو منل سوی شخصیت نه وو؟ د دواړو مختصر جواب منفي دئ. خو که لږ تفصیل لازم وي نو باید زیاته کړو چي هغه وخت چي سید جمال الدین د پان اسلامیزم جنډه پورته کړه هیڅ اسلامي مستقل دولت د ترکیې او ایران پرته موجود نه وو او ټول د استعمار تر تنې لاندي وه. ترکیې اقلاً د خوب اړړمۍ کښلې، یا ئې د خلافت د دور وروستي نفسونه ایستل. دلته په افغانستان کي امیر محمداعظم خان د پرنګي پر نوکرۍ د ورونو په سیالي کي سرقلفي ورکول او د ایران حکومت د پرنګي بې مشورته تربچه او ترتېزک نه سوه رانیولای.

اوس هم سربېره پر دغه چي په اسلامي نړۍ کي ډېر د پټو پاچهان موجود دي خو په الجزایر کي یا په ترکیه کي اسلامي حکومتونه نه پرېږدي چي پر ګدۍ کښېني یا ئې د افراط په ګناه له کرسۍ څخه راغورځوي. ایران په دغه ګناه مواخذه کېږي او صدام خو ته وینې چي د عربي قومیت په ګناه دا اته کاله تر تلاښۍ او تفتیش لاندي دئ، نو که اوس دا حال وي د هغه وخت قیاس ته په خپله کولای سې چي د دغي فلسفې کامیابول څومره مشکل امر وو.

د سید جمال الدین تر آواز وړاندي ئې لا ترکي خلافت ضعیف کړی او مسلمانان ئې پر عرب او غیر عرب ویشلي وه. په خپله عربي ئې پر بربر، قبطي او عرب سره بېل کړي او په عربو کي ئې اصیل او بدل را ایستلي وه.

په نتیجه کي د سید جمال الدین طرح نه د ده په وخت کي او نه هم تر ده وروسته هیڅکله بریالۍ نه سوه. البته د هغه طرح د استعمار طرد وو، نه د نور اخوانیت فلسفي او تیوریک تبلیغ. اخوانیت په دې زمانه کي په مصر کي شیخ قطب او حسن البناء راویوست. د سید جمال الدین د شهرت څخه د ګټي اخیستلو په منظور ئې د سید جمال الدین نوم د هغو پیروانو په کار اچولی دئ. جمال عبدالناصر مرحوم په ځواني کي دغه د اخوانیت په مکتب کي وروزل سو، وروسته چي د ده د عربي قومیت نظریه د هغو د قدرت طلبۍ د هڅو سره په مقابل کي قطب کي ودرېده هغه وخت نو جمال عبدالناصر لومړی سړی وو چي هغوی ئې (اخوان الشیاطین) وبلل. البته د هغو دلایلو پر بنا چي پرنګي په عربي نړۍ کي په ژبه پوه ګوډاګیان او پخې څانګي درلودې. جمال ناصر هم له دنیا څخه ارمانجن ولاړ. اوس دا دئ صدام پر نوبت ورته ولاړ دئ. بله خبره نو دا چي ته وایې سید جمال الدین په نړۍ کي یو منلی سړی وو. باید در په ګوته کړم چي که منلی سړی هغه څوک وي چي په ژوند کي نه په خپلو خلګو کي محبوبیت ولري نه په هغو کي چي ده ئې د نجات له پاره رغ پورته کړی وي او ناچاره سي چي هغه چا ته مخ واړوي د کوم پر خلاف چي ئې مبارزه پیل کړې وي. اما تر مرګ وروسته ئې تابوت او هډوکي تبرکاً او تیمناً له فرسخونو او مملکتو څخه خپلي خاوري ته رارسوي او پر

هڅو ئې د دولتو سره خوله وي. خو خبره ئې په دغه وخت کي هم داسي نه مني لکه په ژوند کي چي ئې نه وه منلي نو دا خبره سمه ده چي سيد هم پسله مرگه منل سوی شخصيت دئ او هم په خپل ژوندانه کي دغسي وو.

د عامو انسانانو دا خاصيت دئ چي تر آجل ئې عاجل خوښېږي او آني ته تر آتي ترجيح ورکوي. انسان په عمومي صورت پر خپله خبره مين په خپله پوهه او خپل عقل قانع او له ځانه راضي وي. بل هغه وخت ستايي چي د ده له نظر سره توافق يا د ده د گټو سره تطابق ولري، که چيري د منني او ستايني ضرورت سي نو هغه وخت رجال مني او ستايي چي يا مړه سي يا له صحنې ووزي. سيد جمال الدين به ويل: مړه قومونه خپل مړي ستايي او ژوندي قومونه خپل ژوندي تائيدوي.

حضرت ابوالبشر خو د خپلي کورنۍ او خپلي مېرمني پېغمبر تېر سوی دئ د کور حال ئې ډېر بهر ته نه دئ راوتلی خو بيا هم سړی دا اټکل کولای سي چي ټولو زامنو به ئې ښه په خوله نه کول، خو حضرت نوح عليه السلام چي نهه نيم سوه کاله تبليغ وکړ نتيجه ئې د قوم ملنډي او د کښتۍ په وسيله تښتېدل سوه. حضرت عيسی عليه السلام چي له تولده څخه تر مرگه پوري ئې پرله پسې معجزې ښکاره کولې او په دين کي ئې اخلاقي موعظې وې بالاخره ئې امت په دغه غاړه وايسته چي په خپل زعم ئې گويا هغه ځوړند کړ. ته په خپله دغه سلسله نوره هم په حاضر کي هم په ماضي کي اوږدولای سې چي د حافظ سترگي پسله مرگه بادامي کېږي.

بله خبره نو بيا په ژوندانه کي يا پسله مرگه تر مطلوب اندازې زيات عاميانه تائيد دئ. سلطان علي خان د کندهار د فرقې پنجابي ډاکټر وو. هغه به ويل "پيران نمی پرند مريدان می پرانند". سيد جمال الدين او د ده نور امثال د مشايخو او حکماوو په شمول په ژوندانه کي دومره ستر نه وه، لکه پسله مړيني چي غټېږي. مثلاً دا چي ويل کېږي چي فرانسوي ژبه ئې په دوی هفتې کي زده کړه، که راکړه واخله مطلب سي نبوغ نه افاده کوي او که ټوله ژبه مطلب وي نو بيا مبالغه ده. الحاق دئ د مخلصانو خوشبيني ده. دا خو د علم او ذکاوت په برخه کي.

د قدرت او سياست په ډگر کي د امان الله خان او ظاهرخان مثالونه د توجه وړ دي. دا نو د ابتدايي انسانانو خصوصاً په شرقي پسمانده قومونو کي عام خاصيت دئ او په دې لار او دغه کار کي غربيان تر خوشبينۍ او خوشباورۍ و حجت او برهان ته ډېره ترجيح ورکوي.

که د اخوانيت څېرنه د يوه سياسي مکتب په دود يا د يوې مذهبي فلسفې په شکل سړی مطرح وگڼي، نو دا به ډېر درووند کار وي، هم وخت غواړي هم مطالعه، هم استقامت ورته په کار دئ هم حوصله. څو د مطلب حق تر يوې اندازې ادا سوی وي، چي سمدستي و دغه کار ته ځان وقفول او و هغه ته گونډه وهل نه زما په وس پوره ده او نه ئې صلاحيت لرم څه چي مي وړاندي و تا ته ليکلي وه هغه فقط د عقيدې اظهار وو او بس.

۲/ بل مضمون چي تا را په گوته کړی دئ هغه دا دئ چي زه د هند په باب معلومات درته وليکم:

کله چي تر عالمگير وروسته شهزاده خرم تخت و تاج قبضه کړ، نو ئې درباريان او کاهنان وگومارل چي د ده له پاره د پاچهۍ لقب غوره کړي او هغو تر غور او مشورو وروسته شاه جهان پېشنهاد کړ. خوند خو به ئې ضرور

ورکړی وي بیا ئې هم وویل چې زه خو لا تر اوسه د جهان پاچا نه یم یوازې د هند پاچا یم. آیا د دې لقب غوره کول به مبالغه نه وي؟ هغوی په جواب کې ورته وویل چې جناب عالي هند د جمل (ابجد) په حساب د جهان سره برابر دئ:

| ه | ن | د | | ج | ه | ا | ن |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۵+ | ۵۰+ | ۴ | | ۳+ | ۵+ | ۱+ | ۵۰ |
| =۵۹ | | | | =۵۹ | | | |

هغو چې هر څه ویلي او کړي دي یا د هغو د عمل منشاء او سایق چې هر څه وو هغه به وو، خو دا اوس د څلورو پېړیو خبره ده. مګر نن چې نړۍ یوې خوا ته کړې او هند بلې خوا ته د هند تنوع که پر زیاته وي کمه نه ده. تنوع په لباس کې، په خوړو کې، په ژبو کې، په عقایدو کې، په رنګونو او بڼو کې، په جامو کې، په دود او دستور کې، په عباداتو او اعتیاداتو کې، فرهنګي او کلتوري تنوع، د رقصونو انواع او د موسیقۍ ډولونه، مختلف اجتماعي طبقات Cast چې په لوی سر کې پر څلورو وېشلي دي، خو فرعي انقسام ئې ملیونو ته رسېږي او د هر شغل او حرفې له پاره یوه خاصه طبقه په اجتماعي پوړیو کې موجوده ده. یو وخت په هند کې تر ۳۳۰ ملیونو ارباب الانواع پوري موجود وه او عبادت ئې کېدی. په داسې حال کې چې همېشه دوی واحد خدای هم منلی دئ. د دوی د تناسخ د عقیدې تر شا لویې اخلاقي فلسفې ولاړې دي. غالباً به د ندیم شعر وي:

اسید کشور هندم که از وفور سرور
گدا بدست گرفته است کاسه تنبور

دلته تر هر څو کیلومتره وروسته انسان له یوه بېل فرهنګ، بېلو جولو او بېل مدنیت سره مخامخ کېږي. ډېر ارزښتناک تاریخي آثار او آبدې لري او ښه ئې هم ساتي، چوروي ئې نه، خرڅوي ئې نه. اوس ورو ورو په هندوستاني نېشنلیزم د خپل قومي نېشنلیزم په اړخ کې پوهېږي.

د اداري طرز ئې کانفدرېشن دئ. هر ایالت ځانته خپل اختیارات لري. نفوس ئې یو میلیارد ته رسېږي او په خپله ډوډۍ ماړه دي. آزادي او دیموکراسي ئې په وړاندې تلونکو او انکشاف کوونکو هیوادونو کې ساری نه لري. د نړۍ تر ټولو لوی دیموکراتیک هیواد دئ. د ګڼ اولس لرلو سره سره په هر مورد کې خودکفائي لري. پر خپلو پښو ولاړ هیواد دئ. اوس خو لا ذروي قدرت هم سو.

د مسلمان نفوس په اعتبار هم تقریباً د لومړۍ درجې هېوادونو په لړ کې درېږي. مشهور اسلامي پوهنتونونه او مدارس لري. د دیوبند او بریلي مدارس ئې مشهور دي او د علیګړه پوهنتون ئې قدیم پوهنتون دئ چې سر سیداحمد د سید جمال الدین پیرو جوړ کړی دئ. د افغانستان او پاکستان د پښتني نفوس په اندازه په هند کې د تاریخ په اوږدو کې پښتانه ډوب سوي دي. د بنګال پښتني حکومت، د ملتان لودي دولت په هند کې غوري، لودي او سوري دولتونه د هغو باقیات صالحات دي. دا سلسله څېړل د یوې علمي اکاډیمۍ یا تاریخي انجمن کار دئ. دا بېله خبره ده چې زموږ په نظر دا قوم وړوکی راځي او په عار مو هم نه راځي چې طبعاً زموږ پر ناخبرۍ او بېځایه تکبر دلالت کوي.

کله چې غزنوي سلطان محمود د خپل دربار د غنی او ښکلا په غرض په خپل عصر کې له شاوخوا خصوصاً له ساماني دربارہ څخه معاصر فلاسفه او حکما ور وبلل. د سلطان د تنګ نظرۍ او مذهبي تعصب پر بنا ځینو دغه دعوت نه ومانه او وتښتېدل لکه شیخ الرئیس ابو علي ابن سینا چې همدان ته وتښتېدی.

څوک زندان ته ولوېدل لکه ناصر خسرو بلخي ... او څوک و دربار ته ورغله لکه ابو ریحان البیروني.

ابو ریحان د سلطان محمود سره د سومنات په مشهوره پېښه کې هند ته تللی وو. هغه وخت چې سلطان له هغې خوا د اولجو او غنائمو سره بیرته راستنېدی ابوریحان حضور ته ورغی او د پاتېدو له پاره ئې اجازه وغوښته. کله چې سلطان د علت پوښتنه وکړه، هغه په جواب کې ورته وویل چې: "له عمرونو څخه مي دغه ارمان درلود چې یو وخت هند له نژدې ووینم او د هغه د حکمت او فلسفې سره روږد سم. څکه چې تا و هند ته ډېر سفرونه کول او ډېري پلاوي دي درلودې نو زه ستا دربار ته درغلم. اوس چې ستا په ملګري خپل مرام ته نژدې سوی یم اجازه غواړم له نژدې د دې خلګو په عقایدو پوه سم او ژبه ئې زده کړم. سلطان اجازه ورکړه. دی پاته سو، سنسکریت د هند مذهبي او فلسفي ژبه ئې په کلو کلو زده کړه. د دوی په مذهب او عقایدو پوه سو. د دوی پر علومو ئې مرور وکړ. په رواجونو ئې بلد سو او تر کلونو کلونو مطالعاتو وروسته ئې خپل تلپاته اثر (ماللهند) وکیښ چې تر دغه وخته ماخذ او مرجع دئ.

د ابوریحان د زده کړې شوق تر دې اندازې وو چې د مرګ په ناروغي کې ئې یو دوست پوښتني ته ورغلی وو او ده له هغه څخه د کوم شي په باب چې د هغه د تخصص په ساحه کې وو پوښتنه وکړه. هغه د موقع د نزاکت په لحاظ ورته وویل: استاده اوس ته په تکلیف یې چې خدای دي ښه کړي بیا به دا خبري څېړو. البیروني ورته وویل چې زه پوهېږم چې مرګي حاله یم، خو ته په خپله فکر وکړه چې زه د دغه سوال په جواب ناپوه ومرم ښه به وي او که هغه پوښتنه راته حل وي؟ دوست ئې ناچاره سو د سوال توضیح ئې په جواب کې ورکړه او وایي چې کله زه له استاد څخه تر اجازې وروسته راووتم، په څو قدمي کې مي ژړا او کوکاري او د ساندو نارې واورېدې چې هغه وفات سو. (اناالله و انا الیه راجعون).

لالیه! د هند په باب لیکل او ویل یا د ابوریحان نبوغ غواړي یا د هند پېژندنې له پاره د عالمانو او پوهانو یو انجمن او فرهنګي مرکز غواړي چې عمرونه عمرونه تحقیقات وکړي. دا کار تر ما او زما تر امثالو مشر او لوی دئ. خو زما عامیانه مشاهده وایي: دغو خلګو سربېره پر دې چې پر مال او دولت ئې ایمان راوړی دئ او پیسې د خدای عطا او نعمت او د خپلو تېرو ژندګیو اجرت ګڼي او درنښت ئې کوي، بیا هم خس دزده نه دي، شی نه پورته کوي، د نیم ګزي او ترازو غلا نه کوي، په حساب کې غلا غوندکان نه دي.

که څه هم په عمومي صورت درواغجنان، بې حیا او وعده شکنان دي. پر ماهرانه او غټه غلا صرفه نه کوي او عموماً په شناخت، سلام علیک او نمک خوري نه دي ویشتلي.

خط مي پر بام و پیتاوي ته کیښ چې له هوا څخه غج غج ښایسته شین توپکه راغله، پر بام راته کښېناستل، له ما نه وبېرېدله مسته مسته مي و مخ ته ګرزېدل او لکۍ ئې خوځول، خپله هلکینه را په زړه سوه چې تلکي به مو دباندې پسې ایستې نیولې به مو، کله به په لاسو کې ښه ښه سوې، کله به په کندو کې مړه سوې، کله به د پیشیانو تر خوله سوې، د یارمخچکو او جلانو او سارکو په تورونو نیول خو لا د طبیعت د موازنې په پراخه پیمانه ورانول وه، پر زرکو د غرونو چیننې ترل او هغه د توپک تر خوله لاندې کول، و هېلیو ته په

چمنانو کي خزې نیول، د غرو د مېړونو قتل عام، د دښتو په هوسیو پسې جیپان ځغلول او په توپک ویشتل دغه ټول ظالمانه لوبې یو په بل پسې د ښکار په نامه سترګو ته جګې راته ودرېدلې او تر هغه لا ظالمانه دغه چې دغه د طبیعت ورانلولو ته به ئې د سنت نوم هم ورکاوه. دا چې هغه ښکاریان په خپله یا د هغو اولاد د اجل طعمه او د ګولیو نذر سوه، غالباً به د وران سوي طبیعت انتقام یا د خدای عبرت وي. دلته خو (په هند کي) د خدای مخلوق نه ځوروي، د طبیعت موازنه نه ورانوي او ښکلا ئې نه خرابوي. د طاوس څخه تر ټپوس پوري هر مرغه، له غوا څخه تر سرکوزي پوري هر بوده، له زمري څخه تر سپي او لېوه پوري هر درنده په امن دي. یا خپله روزي خوري او له خپلي فطري آزادۍ څخه تمتع کوي یا خیرمن خلګ د دوی شومه برابروي. بېزوګان او غواوي خو د خلګو د کورونو په خرڅ کي ونډه لري؛ ځکه دوی آرام او طبیعت ئې ښکلی او رنګین دئ. زموږ چي دلته دا حال دئ چي یو د بل د خولې او جېبه ئې کاږو، یو پر بل ظالمان یو:

دنیا طلبیدم و به مقصد نه رسیدیم
هیهات چه شـــود آخرت نا طلب ما

۳/ د نبي عظیمي کتاب دي لوستی او له هغه څخه د ډاکټر نجیب مرحوم په باب پوښتنه درپیدا سوې ده. که ته ښه ورته ځیر سوی یې نو له کتاب له سره تر پایه دی په خپله مدارمهام وو. مرکزي شخصیت وو، په هر ډګر کي فیصله د ده په توره او تدبیر کېده. دا د داودخان له کودتا څخه واخله د نجیب الله د رژیم تر سقوط پوري. د ده په ادعا هر څه چي وو دی وو. پوښتنه دا ده چي د ډاکټر نجیب الله تر استعفی وروسته نور د ده او د هغه اړیکی څه وو، نجیب الله د دولت له ذمه وارۍ څخه د نظامي برخي، عامي دولتي رهبرۍ، او حزبي قیادت تر مصلحت وروسته استعفی وکړه، که چا کوم نظر درلودای هغه وخت به ئې مخالفت کړی وای، چي ئې نه دئ کړی او له حزبه څخه ئې د حزبي قیادت په وړاندي استعفی وکړه او هغه په دې خبره خوښ او راضي وه.

تر دغه وروسته نو که د عظیمي دا خبره رشتیا وي چي نجیب الله په پټه تښتېدی. سړي ته دا پوښتنه ضرور ورپیدا کېږي چي هغه وخت پرته له کونړ، بامیان، پکتیکا، او رزوګان څخه د ټولو ولایاتو مرکزونه او لویي لاري د دولت په لاس کي وې، کابل مصئون او مامون وو. تنظیمیان چي په سر کي ئې رباني او حکمتیار یا مسعود او سیاف وه، د کابل پر شاوخوا نه سوه ښکاره کېدای، عظیمي د کابل د ګارنیزون قوماندان وو. د مسلحو قواوو درې واړه وزیران وطنجار، پکتین او یعقوبي پر ځای وه او قوتونه ئې ژوندي او فعال وه، په دغه حال کي نو نجیب الله ولي؟ او له چا څخه تښتېدی؟ آیا دغه په خپلو کي د کودتا تصدیق نه دئ؟ او دا چي عظیمي د خپل کتاب په مختلفو مواردو کي له دسیسو څخه خپله اطلاع ښوولې ده، که د مزدک او مومن دسیسه وه که د دوستم او فوزي او دا چي څو څو واره ئې د کارمل پیروي او پلوي ښکاره کړې ده، د عظیمي اشتراک په کودتا کي نه ښکاره کوي؟ او دا چي دی وایي ما ته په هغه شپه د ملګرو ملتو په دفتر کي ډاکټر صاحب نجیب الله وویل چي: "رفیق عظیمی هیچ گمان نمی بردم تو بر علیه من به کودتا دست بزنی...".

د کودتا د اشتراک واضح دلیل نه دئ؟ د دغو دلایلو پر بنا نو خائن عظیمي دئ او که ډاکټر نجیب الله؟ پر دغه سربېره چي د کتاب

په ترخ کي هر څيري چي پښتون دئ او هر څيري چي پښتو ده، له ميراکبر خيبر پرته د ده تبعيضي لهجه د هغو په مقابل کي له ورايه ښکاري.

د برګېډ محمدعظيم په نامه د امير عبدالرحمن خان د امارت په وروستيو کلونو کي يو کارګر وو، په ماشين خانه (د اسلحې جوړولو او ترميمولو وړه کارخانه) کي، عادي کارګر وو. ورو ورو په کار روږد سو، د امير حبيب الله خان په عصر کي د ماشين خانې مشر کارګر سو. کله چي د امير حبيب الله په زمانه کي د مشروطه خواهۍ غوښتي پيل سوې عظيم خان هم و هغو ته لاره پيدا کړه. د هغو د تصميماتو رپوټ ئې حبيب الله خان ته ورووړ، چي د هغه په نتيجه کي اووه تنه په توپ کي والوزول سوه. مولوي محمدسرور واصف، د هغه ورور عبدالرحمن خان، محمدايوب خان پوپلزی او څلور نور په توپ والوزول سول او يوه لو عده نور په اوږده بند محکوم سوه، چي ډاکټر عبدالغني، مولوي نجف علي د هغه ورور او د محمدچراغ په نامه بل ورور ئې ... د مرحوم صوفي عبدالفتاح جمرياني د اکا په شمول په دغه ډله کي وه، چي د امان الله خان په پاچهي کي خوشي سول. د دغه عظيم جان په شان چي وروسته برګېډ سو او په برګېډ عظيمو ئې شهرت وموند يو دوه نور جاسوسان هم وه، چي د يوه نوم ئې زما په زړ دئ. ملا منهاج الدين چي په ملا منهاج لغماني پېژندل کېدی، کيفيت ئې په تفصيل مرحوم مير غلام محمد غبار په خپل تاريخ (افغانستان در مسير تاريخ) او په خپله ډاکټر عبدالغني خان پنجابي په خپل تاريخ يا د خاطراتو په کتاب کي، د روس د استيلا د پېش بينۍ سره ليکلی دئ ممکن استاد حبيبي په خپل نهضت مشروطيت نومي کتاب کي او ميرمحمدصديق فرهنګ په خپل تاليف "افغانستان در پنج قرن اخير" کي هم قيد کړی وي. برګېډ عظيمو له هغه وخته څخه تر اوسه د يوه منفور، غندلي، او ملي خائن په توګه په سياسي محافلو کي پېژندل سوی دئ. دغه رفيق عظيمي د هغه برګېډ عظيمو لمسی دئ او خپل تخلص ئې هم د هغه له نامه څخه را اخيستی دئ.

د عظيمي نور بيان هم ډېر د ثقت څخه برخه نه لري او د اعتماد وړ نه دئ. مثلاً زما په مورد کي ئې ليکلي دي چي د صبغت الله مجددي د تاج پوشۍ او اقتدار سانبالولو په ورځ ما هغه د يوې وينا په ترڅ کي معرفي کړ. مبارکي مي ورکړه او د قدرت تسليمۍ ته مي راوباله. په داسي حال کي چي ما هيڅ په دغه کذائي مراسمو کي ګډون نه وو کړی، ځکه نو د تنظيمي مجاهدينو په خاصه توګه خوا راڅخه بده ده. البته عبدالواحد سرابي د رئيس جمهور معاون، خالقيار صدراعظم، عبدالکريم شادان قاضي القضاة ورغلي وه. هم ئې ويناوي کړي وې هم ئې تبريکۍ ويلي وې، چي وروسته شادان مرحوم ووژل سو، عبدالواحد سرابي وزير سو (د حزب وحدت په برخه کي) او فضل الحق خالقيار له وطنه څخه د وتلو اجازه تر لاسه کړه.

۴/ د تجارت او دنياداری په باب دي مصلحت او مشورت غوښتی دئ که څه هم په دغه مورد کي زه د نظر تښتن نه يم، خصوصاً په موجود حال او موجوده وضع کي. خو ستا د غوښتني پر بنا بايد وليکم چي: ته اوس په داسي وخت او داسي محل کي ژوند کوې چي په کال کي د پېړۍ په اندازه پېښي تېرېږي. هم تجربې د سينما د فلم په دود ثبتېږي او تېرېږي او هم که چا غوښتي وي عبرتونه، خو

که په پخوانيو تجربو او پانياتونو کي څه د ذکر وړ واوسي هغه به ممکن دا وي په هغه څه کي چي په لاس درځي تر خپل مهارت او کمال ئې زيات د خدای تعالی د احسان او تصادف نتيجه وګڼه، د دې له پاره چي که حالات رخ بدل کړي او پر بل مخ واوړي پر تا به نه درنېږي، او دا به هم د ها بل حالت په دود د خدای تعالی ازمويښت يا بل تصادف وګڼې نه د ځان ناکامي.

که دي کله د چا رسره مرسته کول يا دي لاس ورغزاوه هغه خپل انساني فرض او وجيبه ګڼه يا هم د خپل وجداني مسئوليت رفع، ځکه چي د انساني سرکس طبيعت په اقتضاء عموم انسانان د احسان د منلو له پاره انکسار نه کوي، که چيري محسن د امتنان توقع ولري او له دغه وړ حالت سره مخامخ سي شکايت او ګيله ورپيدا کېږي او پر خپل پخواني عمل د پښېمانی احساس ور ولاړېږي. چي په وچه پښېماني ئې د خير عمل ضايع کېږي که چيري ئې د غاړو خلاصولو او وجيبې ادا کولو په غرض د احسان اراده کړې ده هيڅکله به د دغه ډول احساس سره مخامخ نه سي. امانت داري، پر وعده او بول سم ختل، رشتيا ويل هر کله او په هر څه کي له انساني عالي خصايلو څخه ګڼل کېږي.

خو په تجارت او دنياداري کي د سړي اعتبار زياتوي او هغه څه چي وپار؟ ئې بولي هغه ټينګوي. که څه هم تجارت په عام صورت او زموږ د مځکو تجارت په خاصه توګه د تصادفاتو او نوساناتو تابع وي، که چيري سړی د ځان له پاره يو تجارتي لاين غوره کړي ظاهراً ئې تر پراګنده اشغالو ګټه زياته ښکاري.

ډېره ګټه کول د سړي کلا لوړي اما که د هغه له اړخه سره د ګټه رسولو نظر هم موجود وي د سړي ماحول ټينګوي او ذکر خير ئې باقي پاتېږي. پر دغه اساس زه تا ته د مطالعې له پاره يوه پروژه وړاندي کوم چي ممکن درې څلور کاله عميقه تحليلي مطالعه وغواړي.

افغانستان په تېر شل کاله کي کاملاً نه دئ وران سوی، لو برخه خو ئې يقناً ورانه سوې ده، زاړه بنيادونه ئې که نظامي وه که فرهنګي يا اقتصادي اراداتاً له منځه ايستل سوي دي او په دې دنيا کي چي موږ اوسو که مو خوښه وي که نه په دنيا پسي به خوځېږو، له بله پلوه د ټولو ناخوالو او نادودو سره دنيا په اميد خوړله کېږي. ځيني اميدونه خصوصاً د ځوانانو له پاره د دوی په خپل ژوند کي او ځيني نور د بعدي نسلونو له پاره پر هغه اساس دا يو حقيقت دئ چي هيواد نه پر دغه حال پاتېږي او نه هم پر دغه حال پر ښېودل کېږي. د دنيا د هيوادو ښه به اخلي که څه هم په ظاهره او سر ښېږ نه وي.

پر دغه اساس په مدني جوړښت کي لومړی خبره د ودانی او تعمير د سړي مخ ته درېږي او په تعمير کي تر هر څه وړاندي پخه خښته د کندهار پخې خښتي نه پخې وي نه غټي، علت ئې د کورو شکل او د محروقاتو کمی وو. که د لويو کورو چي په مځکه کي دننه جوړېږي او د ډېرو په سکرو پخېږي چي په مسلسل صورت خښته په يوه برخه کي د يوې کورې کار دئ، خو په واقع کي د ودانی د کامل شرکت معامله ده او خپل مستقل او پراخ ترانسپورټ غواړي چي له پاکستان څخه کوله راورسوي، اومې خښتي د ميدانو څخه و کورو ته راوړي او پخې د کورو څخه و کورو ته ورسوي. په سوو خښت مالان او آتش کاران اداره کړي او شلو موټروانان او کلينران، ډېر د سرګردانی کار دئ، دا نه سي ويل کېدای چي

ګټه به ئې د زحمت او سرګردانۍ په اندازه وي خو که نیت ورته د خیر وي اجر به ئې ضرور تر ربړ زیات وي.

د دغه په اړخ کې د تعمیراتو د برخې نور کارونه لا هم د سهامي شرکتونو او بین المللي مرستو پر اساس مطالعه کېدای سي، لکه د سمینټو فابریکه او د تعمیراتو مربوطې نورې خبرې.

خو زما پېشنهاد د پروژې اقتصادي تحلیل او سروې ده او د هغې د عملي کېدو امکانات څېړل او د ګټې برآورد، نه په تجارتي شکل چي اقدام ئې په توکل او تر مطالعې وړاندې وي.

۵/ زما د اقتصادي وضع په باب دې پوښتنه کړې او تشویش دې ښکاره کړی دئ. زه به یوه دو مفید شعرونه درته ولیکم، حضرت بیدل وایي:

دنیئ اگر دهند نخیزم زجای خویش
من بسته ام حنای قناعت به پای خویش

یو بل ښه شعر ئې هم را په زړه سو که څه هم په دغه مورد کې نه دئ چي وایي:

گر فلک یک صبحدم بامن گران باشد سرش
شام بیرون می روم چون آفتاب از کشورش

یا د رحمان بابا دا شعر:

وهښته سپین ستر ګي تاریکي غاښ ګنداس
وادي نه خیست د دنیا د چـــــارو لاس
پر هــر لــوري چي ئې درومې پسې درومې
نه په کــېن لــوري صرفه کړې نه په راس

زه الحمدلله پوروړی نه یم، په دې هم نه یم ویشتلی چي وارثانو او بازماندګانو ته له ما څخه څه ورپاتېږي که نه. که زما څخه پور یا بد نوم ورپاته نه سي زه قانع یم. که په دغه شکل سر او تن ومرم تر هغه چي تر شا مي مال او متاع پاته سي ترجیح ورکوم. که د دې خبري اطمینان ولرم چي په خپل کفن کي ونغښتل سم روحاً به تسکین راپه برخه سوی وي. دا مځکه آسمانونه، لمر او سپوږمۍ، دا ستوري او کهکشانونه، دا دنیا او مافیها ټول د خدای بولم ځکه د قبر د مځکي فرمایش هم نه لرم. په ژوندانه کي مي ډېري لوړي ژوري، ډېر لیل و نهار او ډېر صعود او نزول او حضیض او اوج ولیدل. تر هغه بالا چي ما ئې تصور کولای سوای، زه فکر کوم چي په هیڅ حال او هیڅ موقع کې مې ضبط نفس له لاسه نه دئ ورکړی، چي دا هم د خدای تعالی توفیق او هدایت ګڼم. پاته ژوند ډېر اوږد نه راته ښکاري، سودا ئې هم باید اوږده نه وي.

تا ته دي خدای تعالی توفیق او برکت درکړي، ستا له پوښتنې څخه مننه، په ما کي چرت مه وهه کور دي ودان.

د مرحوم شیخ صاحب یوه خاطره او ذکر خیر:

شیخ صاحب له پښتنو او پښتو سره ډېره مینه درلوده، تل به ئې د هغو نادري او د حیرت وړ قصې کولې. ویل ئې یو وخت د میان محب الله پېښوري سره اجمیر ته د خواجه معین الدین چشتي زیارت ته تللی وم، چي د زیارت په بهرني سرک کي یو تک تور، ډېر خیرن، بنګالی هندی ملنګ ډوله سړی ناست دئ او پر یوه خیرن ټوکره ئې بېکاره ګوجیان، مرۍ، ښکران، بوټي ... د خرڅلاو له پاره اوډلي دي ورته ناست دئ. میان محب الله پوښتنه وکړه چي دغه ملنګ څوک بولې. ما ورته وویل چي غالباً بنګالی. هغه ویل زما په ګومان پښتون راځي او ما ئې کورټ تردید وکړ.

میان چلنج راکړ چي راځه هورې ئې وګورو. ورغلو، ملنګ ته او میان په پښتو روغبړ او جوړ تازه ورسره شروع کړ، څه حال دي دئ؟ او د خبرو په ترځ کي ئې ورته وویل: کاروبار سم دئ، څه خرڅېږي که

نه؟

ملنګ پوه سو چې موږ فقط د ده د معلوماتو له پاره ورغلي يو، نو ئې وويل: هاو کنه، د خدای احسان دئ، تيکله ملاوېږي، څوک چې ايماندار وي راځي څه مال آلي، او کوم چې بې ايمان وي هغه راځي پوښتني کوي او هسي ځي او روانېږي.

ښه نو ظاهرجانه! دا وار بيا په هوتو بوتو ډېر مخونه تور سوه. سړی کله هيڅ نه سي ليکلای، کله بيا برغزووي بې شمېره سي. د کلام طوالت ګوندي د جواب د ځنډ جبيره کړې وي. کورنۍ او دوستانو او هغه چا ته چې ته ئې لازم ګڼې زما سلامونه ورسوه. او دا چې هلته هره ورځ نوي او نادري پېښېږي که ئې کله راته وليکې له جريانه به ليري نه يم لوېدلی.

نور به دي د اوږده او مثمر ژوندانه د دعا سره پر لوی او مهربان خدای وسپارم.

داعي او مخلص هاتف

د خط پر ختم را په زړه سوه چې دا ده روژه مبارکه راورسېده، ستا له پاره ئې د ښه ساتلو او نيولو توفيق غواړم، په تراويح کي هم بری درته غواړم، مرحوم شيخ صاحب به په تراويح کي اقلاً په يوه ختم کي اشتراک کاوه، که به د تراويحو دوه ختمونه ور ميسر سوه هم ئې ګډون پکښې کاوه.

کله چې به په کندهار کي وو، د دور په ختم کي به ئې هم ګډون کاوه، خو تراويحو تر ختم وروسته ئې د جماعت په عادي تراويحو کي د مياشتي تر پايه اشتراک کاوه. کله چې زه او مرحوم شيخ صاحب په کابل کي د تراويح له محله څخه ليري واقع سوي وو او تر مسجده پوري تګ راته ګران وو، نو د ختم تر تراويحو وروسته به مرحوم شيخ صاحب په کوټه کي يوازي منفردي تراويح کولې او د مياشتي تر پايه پوري ئې نه قضا کولې. تا ته هم د هغه مرحوم د نېکي لاري د اقتفا دوعا کوم.

***

ليکوال: جبران خليل جبران
مترجم: احمدالله څرګند

## دوه عالمان

يو وخت په يو تاريخي ښار (افکار) کي دوه عالمان اوسېدل چې يو بل ئې بد ايسېدل او يو د بل پوهي ته ئې ارزښت نه ورکاوه. يوه د خدايانو وجود نه مانه او هغه بل ئې پر شتون باور درلود.

يوه ورځ دوی دواړو په بازار کي سره وليدل او د خپلو پيروانو په منځ کي ئې د خدايانو پر شتون او نه شتون بحث پيل کړ. تر ساعتونو مناقشې وروسته سره جلا سول.

ملحد (له خدايانو منکر) عالم په هغه ماښام معبد ته ولاړ او د محراب مخته ئې ځان پر مځکه واچاوه او خدايانو ته په زاريو سو چې تېر ګناهونه ئې ور وبخښي.

په همدغه ساعت کي هغه عالم چې پر خدايانو ئې عقيده درلوده، خپل ټول مقدس کتابونه وسوځل؛ ځکه چې خپله عقيده ئې د لاسه ورکړې وه.

***

ليکوال: استاد م. معصوم هوتک/کاناډا

# د غره او د وره

(دريمه برخه)

د ميرويس لېسې د کنفرانسو او ډرامو دائرېدلو اوږد تاريخ درلود. د کنفرانس او ډرام د سرپرستۍ کار به عموماً د دوولسم ټولګۍ د زده کوونکو پر غاړه وو. زموږ صنف په نهم ټولګي کي له اداري سره تر مفاهمې وروسته د کنفرانس د رياست او مشرتوب له پاره په زده کوونکو کي د انتخاباتو موضوع طرحه او عملي کړه. پخوا به د کنفرانس رئيس د اداري له خوا ټاکل کېدی. دغه وخت (۱۳۴۳ش) په افغانستان کي ديموکراسي راغلې وه او اساسي قانون اعلان سوی وو. د ميرويس لېسې د کنفرانس په انتخاباتو کي زموږ يوه همصنفي نعمت الله عزيز اکثريت رايي وګټلې او د کلونو کلونو تعامل چي د کنفرانس مشرتوب بايد د دوولسم ټولګي پر غاړه وي، مات سو او دا مشرتوب د نهم ټولګي يوه زده کوونکي وګاټه. په لېسه کي ئې زموږ د ټولګي مخکښې تثبيت کړه او بيا نو تر دوولسم صنفه پوري دا مشرتوب زموږ د ټولګي په واک کي وو. په دې کار کي اساسي عامل زموږ د همصنفيانو استعداد، لياقت او يووالی وو. وروسته له دغه يووالي څخه د هغه وخت سياست والو استفاده وکړه، چي تفصيل به ئې وروسته ولولی.

د کنفرانس او ډرام ورځ هره هفته (يا هره دوهمه هفته) د پنجشنبې ورځ ټاکل سوې وه. په کنفرانس کي لوستل سوي مقالې په يوه دېوالي جريده کي راغونډېدلې او د لېسې په مرکزي دهلېز کي به ځوړندي وې. د دې جريدې نوم له پخوا څخه (ميرويس ږغ) وو او موږ هم په اول سر کي همدا نوم پسي راژوندی کړ، خو وروسته دا نوم په (ختيځ) سره اليش سو. د دېوالي جرېدې د تنظيم او ليکلو چاري زما او محمدصديق ظهير پر غاړه وې. وروسته يوازي زما پر غاړه ولوېدلې. د خطاطۍ او نقاشۍ کار ئې له اوله سره ما کاوه. دا خبره مي بايد دمخه لا کړې وای چي په کندهار کي د دارالمعلمين له تاسيس سره سم د ميرويس لېسې پخوانۍ ودانۍ چي په ده خوجه کي واقع وه، دارالمعلمين ته په اختيار کي ورکړه

سوه او میرویس لیسه په منزلباغ کې نوې جوړ سوې تعمیر ته نقل سوه چې اوس هم په هماغه تعمیر کې ده. له بده مرغه چې دغه لیسه د جهاد له کلو راهیسې په عامه توگه "ژړ مکتب" نومېږي[1].

په افغانستان کې د معارفو په وزارت کې داسې دود وو چې د دوولسم ټولگي زده کوونکي به ځینو ولایتونو ته په علمي سفر تلل او د هغه ولایت له زده کوونکو، د ولایت له تاریخي آثارو او ځایو سره به آشنا کېدل. دغه راز علمي سفرونه به معمولاً د هر ولایت و نږدې گاونډي ولایت ته کېدل. د اعاشې او اباتې مصارف د کور به ولایت د معارف پر غاړه ول او ټرانسپورټي وسیله به علمي سفر کوونکو سربېره کوله. د کندهار زده کوونکي به زیاتره هرات یا کابل ته تلل او برعکس. موږ چې لسم ټولگي ته ورسېدو، نو زما د وړاندیز له مخې مو د دولسم ټولگي د سیر علمي له پاره یو سوندخ جوړ کړ او ټولو زده کوونکو همصنفیانو به هره اونۍ پنځه پنځه افغانۍ دغه سوندخ ته اچولې. د پیسو د راغونډولو او ساتلو مسئولیت ئې ما پر غاړه واخیست. دوه کاله وځو میاشتې مو دغه پیسې راغونډې کړې او په دوولسم ټولگي کې مو مزارشریف ته د علمي سیر د کولو پروگرام د لیسې له ادارې سره جوړ کړ. د بس موټر د کراهیې دوه پر درې برخه د همدغو سپما سوو پیسو څخه ورکول سوه. دغه راز د اوږدې مودې پروگرام له یوې خوا یو ابتکاري عمل وو چې زموږ تر ټولگي دمخه او وروسته ئې ساری نه وو او له بلې خوا زموږ د ټولگیوالو پر یووالي او خواخوږیتوب باندې یو دلیل هم گڼل کېدلای سوای. د دغه پروگرام په عملي کېدو کې زما پر رول او امانتدارۍ باندې د ټولگیوالو د اعتماد خبره هم د پاملرنې وړ وه.

## مزارشریف ته علمي سفر:

د ۱۳۴۵ش کال د سنبلې پر شپاړسمه د سهار پر نهو بجو مو د میرویس لیسې د ودانۍ له مخې څخه د وردگو د یوه ترانسپورټ په بس کې مخ پر کابل حرکت وکړ. د لیسې مدیر محمدنبي خان محمدي او استاد نومیالی مو د سفر ملگري ول. د مازیگر پر مهال د کابل دارالمعلمین ودانۍ ته ورسېدو. د شپې د تېر له پاره د دارالمعلمین یو لوی اطاق راته ټاکل سوی وو. د شپې د ډوډۍ سربېره هم د دارالمعلمین ادارې کړې وه. په دغه شپه مو د دارالمعلمین له زده کوونکو سره د شپې تر ناوخته پورې علمي او سیاسي بحثونه او د افکارو تبادله وکړه. دغه وخت په افغانستان کې د نوې دموکراسۍ په راتگ سره سیاسي جریانونه فعال سوي ول. د کابل په دارالمعلمین کې د دغې شپې خاطرات زما یوه تېروني آشنا او د پنځوسو کالو اندیوال ښاغلي اخترمحمد خان معلم زما پر یوه کتاب "پښتني قبیلې او روایتي ریښې" باندې په یوه لیکنه کې بیان کړې دي. دا کتاب د ښاغلي اخترمحمد خان په مالي مرسته چاپ سو.

له کابل دارالمعلمین څخه مو په دا سبا سهار پر اوو بجو مخ پر سالنگ حرکت وکړ. د چاریکار په بازار کې مو لنډ توقف وکړ. ملگري مو له موټره کښته سول. چا له نانوایي څخه تودې ډوډۍ راواخیستلې. چا پېروی او شیدې راوړې، ځوک د چاقوگانو پر دوکانو

---

[1] ډاکټر توریالي ویسا راته وویل چې: د ژړ مکتب نوم اوس دونه عام سوی دئ، چې د ولایت په اداري مجلس کې ئې د ادارو رئیسان هم په دغه نامه یادوي.

ګرځېدل[۲]. دې توقف مو له ټاکلي پروګرام څخه یو څه زیات وخت ونیو. پر انډیوالانو مو څو واره ږغ وکړ چې موټر ته راوخېژي، هغوی چندان غوږ نه نیو. ما او نومیالي صاحب د لارې په اوږدو کې في البدیهه مشاعرې کولې. په دغه وخت کې ئې د موټر له اول سیټ څخه راږغ کړه، چې:

"په چاریکار کې به چړې رانیسو".

ما ورغبرګه کړه، چې: "ډوډۍ تودې او هم شیدې رانیسو".

ده ول: "که چا ځغستله، بیرته نه راتلله".

ما ول: "نو دا په کار ده چې کړې رانیسو".

تر خپل پروګرام تقریباً یو ساعت وروسته مو له چاریکاره حرکت وکړ. شپه مو پلخمري ته ورسوله. له هغه ځایه سبا مزار شریف ته ولاړو. په مزارشریف کې د باختر لېسې اداره (مدیر او ځیني معلمین) زموږ مېلمه پال ول. د لېسو له هلکانو او نجونو زده کوونکو سره زیاتې لیدنې کتنې تر سره سوې. دغه وخت په هیواد کې سیاسي جریانونه نسبتاً منظم سوي ول. په مزارشریف کې زده کوونکو زیاتره د شعله جاوید جریان ته خوشبیني درلوده، په داسې حال کې چې د کندهار په زده کوونکو کې د خلق جریان زیات نفوذ درلود. دا سفر زما له پاره ډېر په زړه پوري وو. د هیواد شمالي صفحات، سالنګ، د مزارشریف ښار، د شاه ولایتمآب روضه او په هغو کې د امیر شېرعلیخان او نورو سردارانو قبرونه، د روضې کتابتون او په هغو کې قلمي قرآنونه، د بلخ تاریخي آبدات، د یتیم طاق، د تېلو څېځان او نور د نفتو تاسیسات، ...او نور هغه ځایونه ول چې ما د اول او آخر وار له پاره ولیدل. تر هغه وروسته یو یا دوه واره نور مزارشریف ته تللی یم هغه هم د لنډ سفر له پاره. د دغه سفر په جریان کې مو د هغه اور ننداره هم وکړه چې په شبرغان کې د نفتو په ځاهانو کې د روسانو د بېباکۍ له امله لګېدلی وو او لمبې ئې د یوې غونډۍ دپاسه د مځکې له درزو څخه راوتلې وې. ما په دغه وخت کې د عکاسۍ کمره درلوده[۳] او د دغو ټولو ځایو عکسونه مې اخیستي ول، چې یو څوئې اوس لا هم راسره سته.

په لېسه کې د تعلیم په دوران کې بله خاطره له خان عبدالغفار خان (پاچاخان) سره لیدنه کتنه وه.

په افغانستان کې د دیموکراسۍ له راتګ سره سم خان عبدالغفار خان هم د افغانستان د ولایتونو، په تېره بیا د جنوبي او جنوب ختیځو ولایتونو دوره شروع کړه. کندهار ته د ۱۳۴۴ش کال د ژمي په سر کې راغی. د احمدشاه بابا او میرویس نیکه لېسې له زده کوونکو سره ئې هم وکتل. زموږ لېسې ته هم په داسي ورځ راغی چې باران اورېدی او د لېسې په انګړ کې د زده کوونکو د راغونډېدو مجال نه وو. مجبوراً ئې د لېسې د ودانۍ په اوږده دهلېز کې مېز و چوکۍ ورته کېښېښووله. پاچا خان د هغه وخت د پوهنې د لوی مدیر عبدالغفور ویاند سره یو ځای راغی. زده کوونکو ته ئې د ژبې (پښتو) پر اهمیت وینا وکړه. د ده پښتني کالو او څېلۍ پر ما ډېره اغېزه وکړه. زموږ یوه همصنفي د زده کوونکو په نمایندګي وینا وکړه او د پښتنو د آزادۍ له

---

[۲] د چاریکار چړې، چاقوګان، غچې په هغه وخت کې مشهورې وې. دې لاسي صنعت په دغه ښار کې ډېره وده کړې وه.

[۳] د عکاسۍ کمره په دغه وخت کې په کندهار کې هر چا نه درلوده.

پاره ئې د عدم تشدد لار وړ و نه بلله. د ده خپله جمله داسي وه، چي "د پښتنو د خپلواکۍ ګټلو له پاره یوه چاره سته او هغه چاره ده". پر پاچاخان باندي دا جمله ښه و نه لګېده، ځکه د ده د ټول ژوند فلسفه (عدم تشدد) ئې ورچلینج کړه. ده په جواب کي دومره قدر وویل چي: "مونګه خو د عدم تشدد لاره غوره کړې ده، تاسي زلمي پوی شه، او تشدد مو. خو تشدد هرومرو نفرت زېږوي...". زه په دغه وخت کي په دې خبرو ډېر نه پوهېدم. خو وروسته راته معلومه سوه چي زما د همصنفي پر وینا د تېري شپې د هوټل په ګرداب کي د طرحه سوو موضوعاتو اغېزه شامله وه. زه په دغه وخت کي د پښتونستان هوټل د ګرداب ګډونوال سوی لا نه وم.

پاچاخان ته په کندهار کي حاجي امیرجان ناصر په خپله کوټۍ کي ځای ورکړی وو او ښاغلي هاتف ئې په ویاړ مېلمستیا کړې وه چي د کندهار زیاتره منورین ورغلي ول. زموږ لېسې ته د پاچاخان د راتګ په وخت کي زموږ د انګلیسي ژبې د هندي استاد مستر سیتهي Mr Sethi حرکات ډېر په زړه پوري ول. مستر سیتهي د پاچاخان په لیدلو سره دومره احساساتي سو چي د پاچاخان پښو ته ئې تقریباً نیمه سجده حالت غوره کړ. ما اورېدلي ول چي هندیان و پاچاخان ته ډېر درناوی لري. کله چي مي د دغه هندي استاد درناوی ولید زړه ته مي ولوېده چي هم پاچا خان ستر سړی دئ او هم هندي ملت یو رسېدلی ملت دئ. ما ته د ژوند په اوږدو کي دا خبره ثابته سوې ده چي ژوندي اولسونه د خپلو ملي رهبرانو زیات قدر او درناوی کوي او پښتون قام په دغه کټګوري کي نه راځي.

پاچاخان که له پښتانه قام پرته په بل ملت کي پیدا سوی وای، اوس به ئې قدر یو په زره وای.

د لېسې د تعلیم په جریان کي زموږ ټولګۍ دوه واره د دهلې بند ته او یو وار کوکران ته مېله ایستلې وه. د دې ټولو مېلو د انتظام په کار کي زما نقش تر نورو زیات وو.

نور بیا ...

***

لیکوال: جبران خلیل جبران
مترجم: احمدالله ځرګند

## ستور پېژاند (نجومي)

ما او ملګري مي د معبد تر سایې لاندي یو نابینا سړی ولیدی چي یوازي ناست دي. ملګري مي وویل: "زموږ د مځکي پر مخ تر ټولو پوه سړی ووینه".

په دغه وخت کي له ملګري راجلا سوم او نابینا سړي ته مي ځان ورساوه، روغبړ مي ورسره وکړ او باندار مو وکړ.

شېبه وروسته مي ورته وویل: "خوا دي بده نه سي، له څه وخت راهیسي په سترګو نه وینې؟"

"له پیدایښته"، هغه وویل.

ما وویل: "د پوهي کومه لار دي تعقیب کړې؟"

ده وویل: "زه ستور پېژندونکی یم".

وروسته ئې لاس پر خپله سینه کېښېښود، وئې ویل: "زه دغه ټول لمرونه، سپوږمۍ او ستوري وینم".

***

هارون خپل شعشعي / لندن

# وختونه او یادونه

(دریمه برخه)

### د څارګري انا نېښداره پوښتني!

د مهاجرت په لومړیيو شپو او ورځو کې د نابللي مېلمه په ډول له ځینو خپلوانو سره اوسېدم. تر ما دمخه مي د خاله زوی هم له کابل څخه راغلئ ؤ؛ او د همدغو خپلوانو په کور کي پروت ؤ. که څه هم کوربنه وو مي په ورین تندي پالنه کوله، خو زما پر زړه هره ورځ تر بلي درنه پرېوته. له دې خاطره شپه او ورځ په کور پسي ګرزېدو. د مدرسې له معلمانو او شاګردانو څخه مي هم همېشه په دې برخه کي د مرستي غوښتنه کوله.

څه موده وروسته د صنف یوه نسبتاً غټوکي مودب شاګرد، چي طاهر نومېدئ، د انګرېزي ژبي د خصوصي درس غوښتنه وکړه. پلار و مور. طاهر د کندهار له ماروپ اولسوالۍ څخه د سبق ویلو په مخسد و کراچي ته را لېږلئ ؤ؛ او دا مهال یکي یوازي له خپلي سپین سري انا سره د «الآصف پلازا» په یوه اپارتمان کي اوسېدئ. د طاهر یو اکا په کراچي، بل اکا او عمه ئې له ډېره وخته په جرمني کي اوسېدل. جرمن مېشتي اکا یې د طاهر و روزني او زده کړي ته خاصه توجه کړې وه. یوه ورځ یې د مدرسې تر درس وروسته و ویل:

– مالیم (معلم) صاب! زما انا وایي، راسره زموږ سره ژوند وکه. موږ هم فقط دوه کسه یو. نیمی کریه (کرایه) به موږ ورکوو نیمی به ته.

کله چي مي خپل جېب او حالاتو ته وکتل، تر جلا کور پیدا کولو، د طاهر د انا په تجویز ډېر خوښ سوم. د طاهر د انا اسره دا وه، چي له یوې خوا به د کور کرایه نیمی سي؛ او له بلي خوا به دا خوار خستک معلم شپه و ورځ د دې د نازولي لمسي په چوپړ کي ولاړ یي. سره له دې هم دونه ساده او بې سنجشه ښځه نه وه، چي په اسانۍ یې چا ته په خپل کور کي ځای ورکړئ وای. په دې وجه یې د ماملې تر پخېدو مخکي د طاهر په لاس احوال را واستاوه؛ او د یوه کهنه پیخ څارنوال غوندي یې راز راز پوښتني وکړې:

– هلکه د کم ځای یې؟

– د کندهار یم.

– مور و پلار دي چیري دي؟

– په کابل کي دي.

– ورونه او خوندي لرې؟

– هو څلور ورونه او یوه خور لرم.

– هغوی هم په کابل کي دي؟

– بلې.

– خلکیان دي که پرچمیان؟
– هیڅ شی نه دي.
– ماینه او اولادونه لرې که یا؟
– هو لرم یې.
– هغوی دي ولې نه دي درسره راوستلي؟
– انشاألله څو میاشتي وروسته یې راولم.
تاسي ته مالومه ده، چي له ښځي او کوچنیانو سره پاکستان ته را اوښتل اسانه کار نه دئ. اول باید د کور و ځای غم وخورم، بیا د هغو د راوستلو سرریښته (سر رښته) وکم.
– اوس چیري اوسي؟
– د خاله د لور کره.
– خاله دوی دي چیري دي؟
– په امریکا کي.
د طاهر انا سره و سپینه، جګه لوړه، ښکلې او جذابه ښځه وه. دا مهال ما ته د اتیاوو په خانه کي ایسېده؛ له دې جهته یې پر ملا کړوپېدو سر بېره، حافظې هم ښه کار نه کاوه. د مرکې په دغه پړاو کې یو پلا بیا مخکنۍ پوښتنه وکړه:
– ماینه او کوچنیان دي څه وخت راځي؟
– چي د کور او کار مسأله مالومه سي.
– ګوره د دې کور کریه (کرایه) شپږ سوه کلداري ده. نیمی به ته ور کیې نیمی زه. یوه خونه به ستا یې یوه به زما. طاهر به په دالېز (دهلېز) کي بیدیږي. ته خو اوس یوازي یې، کوچنۍ خونه به تا ته در کم، لو خونه به زه واخلم.
– مور جاني نوري خبري مو ښځي سهي دي؛ خو زه یوازي نه یم. د خاله زوی هم را سره دئ.
– یو یو دا څه ټکه ده. هغه بیا څوک دئ؟
– تر طاهر دوه – درې کاله مشر دئ.
هغه هم زما د خاله د لور کره اوسي.
– مور و پلار یې چیرې دي؟
– په کابل کي دي.
– پلار یې خلکی دئ که پرچمی؟
– خلکی ملکی یا پرچمی مرچمی نه دئ.
– چي خلکی یا پرچمی نه دئ، نو څشته (څه شي ته) په کابل کي ناست دئ؟
– څه و وایم. له دېرشو – پینځه دېرشو کالو راهیسي په کابل کي ژوند کیي.
– څه کار کیي؟
– په آریانا افغان هوایي شرکت کي کار کیي.
– ښه ښه آ د امریکایانو په شرکت کي.
– هو هو د امریکایانو په شرکت کي.
د آریانا شرکت په اروېدو سره د بوډۍ انا زړه یو څه پر پوښتنۍ سو.
– د خاله زوی دي څه کار کیي؟
– بېچاره د چرمي جاکټو په یوه فابریکه کي بې معاشه شاګردي کیي.
– یو یو! بې معاشه شاګردي بیا ولي کیي؟
– په دې چي د خیاطۍ کار و کسب یې نه دئ زده. چا چي کلونه کلونه په تعلیم او تحصیل تېر کړي یي، دلته مجبور دئ، چي له صفره کار و کسب زده کي.
– سهي دئ، هغه هم در سره راوله. لور مي یو څو ورځي دمخه بیرته جرمني ته ولاړه. څو پلا یې را ته ویل، چي طاهر جان ته د کور مالیم ونیسه. تا په دې خاطر را ولم، چي له طاهر جان سره په انګلیسي، حساب او نورو درسو کي ښه کوښښ وکې.
– ولي نه، حتماً.
تر دې وروسته د طاهر جان انا د خپل جرمن مېشتي زوی او جرمنۍ مېرور د کار او تنخا په اړه په زوَر و زېر خبري وکړې؛ خو د هغه زوی یادونه یې هیڅ نه کول، چي د خلګو په قول یې څو کاله مخکي د افغانستان د هوایي قواالوتکه و پاکستان ته را تښتولې وه؛ او

له همغه وخت څخه تر اوسه د کراچي په کمه بله سیمه کي اوسېدئ.
د طاهر انا په داسي حال کي، چي چپه لاس يې پر خپله کړوپه ملا اېښئ ؤ؛ او راسته لاس يې له هري خبري سره دوري هوري ښوراوه، تر خپلو پوښتنو او توضيحاتو وروسته، په دردمنه او آمرانه لهجه وويل:
– څه نو ولاړ سه، سامان دي راوړه! د نن څخه به نيمی کريه تاسي ور کوئ. د برک (برق) او گاز مسرپ (مصرف) هم د نن څخه نيمی پر تاسي دئ؛ نيمی پر موږ.
د دې شرايطو تر منلو وروسته مو سمدستي خپل مختصر بار و بستر پر شا وتړل؛ او سيده مو په هغه کوچنۍ خونه کي واړول، چي د بوډۍ اناله خوارا ته ټاکل سوې وه.
بوډۍ انا به زموږ په هر حرکت پسي داسي ستر گه وړله، چي تا به ويل د پاکستان يا کم بل استخباراتي سازمان له خوا رسمي وظيفه ور کړل سوې ده. په دې خاطر ما او د خاله زوی په خپلو منځو کي د څارگري انا نوم پر اېښئ ؤ. ما غوندي په اوداسه او لمانځه کي ټمبله مالومېده؛ خو د بي بي سي د يوه ماښام خبرونه يې نه قضا کول. په کابل يا نورو ښارو کې د بې گونا افغانانو د ظالمانه قتل عام خبرونه په خورا خوند خوند يادول.
زموږ د کورنيو په باب د څارگري انا شکمنو پوښتنو گروېږنو هيڅ ختمېده نه لرل. يو ماخوستن يې تر بي بي سي خبرو وروسته زما د خاله له زوی څخه بيا همغه تکراري پوښتني وکړي:
– هلکه مور و پلار دي چيري دي؟
– په کابل کي.
– څه کار يې کاوه؟
– په اريانا شر کت کې کار کاوه.
– خلکی ؤ که پرچمی؟
– هيڅ شی نه ؤ. پينځه ويشت – شپږ ويشت کاله کيږي، چي په اريانا کي کار کيي.
– چي خلکی يا پرچمی نه دئ، نو ولي پاکستان ته نه دئ راغلئ؟
–چي کور و کار نه يې څنگه پاکستان ته راسي؟
– دا دو نه خلگ راغلي دي. دوی هم بايد راغلي وای.
کله چي څارگري انا د محمدولي په جوابو کي هيڅ خلا او نيمگړتيا و نه موندله نو يې پوښتنه بلې خوا بوتله:
– هلکه پلار دي په کندهار کي د چا د کور دئ؟
محمدولي سمدستي د پلار د اکا نوم ور و ښيه، چي پر خانۍ او قبيله پالني سرېږه يې د مجاهدينو په يوه تنظيم کي هم لوی نوم او نښان لاره. څارگره انا د دې نامه په اورېدو سره پوره ډاډمنه سوه، چي د محمدولي پلار ريشتيا هم خلکی يا پرچمی نه دئ. که وای هم نور يې څه پروا نه ورته لرله؛ ځکه د څارگري انا کورنۍ هم د محمدولي نيکه غوندي، کټ مټ پر همدې خط روانه وه.
تر دې مثبت بدلون وروسته، ما ته په يوه تجارتي شرکت کي، په نسبتاً ښه تنخا او ښو شرايطو کار پيدا سو، چي له هغه سره مي جوخت نه يوازي د مدرسې بې معاشه او بې قدره معلمي پر ښوولله، بلکي په څو ورځو کي خپلوانو ته نيژدې د جلا کور په پيدا کولو هم برياللي سوو. په دې ترتيب، زموږ د څو مياشتني عذاب او شکنجې دوره پای ته و رسيده.

## په کار پسي ځغاستي:

په پاکستان کي د مهاجرت د کلونو ډېره برخه د کراچي په يوه داسي کمپنۍ کي په کار اخته وم، چي د نړۍ و بېلابېلو هيوادو، په تېره بيا امريکا، کاناډا، جرمني، سويډن او

ډنمارک ته د میلیونو ډالرو په ارزښت تجارتي مالونه استول. څو کاله یې کارونه خورا په خوند کې روان وه. سوو کارګرانو کار پکښې کاوه؛ او هر چا ته د پاکستان له سطحې او معیارو سره سم، مناسب عاید په لاس ورتئ. څو کاله وروسته د نړیوال اقتصاد د کمزورۍ په وجه د فابریکې د صاداراتو ګچه تر پخوا ډېر حده ټیټه سوه. دې ناوړه اقتصادي حالت د فابریکې د مالکانو پر لاس او تندي هم ژوره اغېزه وکړه. په دې خاطر مې له ځانه سره پرېکړه وکړه، چې د کمپنۍ د اقتصادي حالت تر نوري وېجاړۍ مخکې، چیرې بل ځای کار ومومم.

د یوه اشنا په کومک د عربانو و یوې تجارتي کمپنۍ ته معرفي سوم، چې د صادراتو او وارداتو په کاروبار اخته وه. د کمپنۍ دوو مالکانو، ثقاف او عبدالغني تر استخدام مخکې د کار د شرایطو، تنخا او نورو امتیازاتو په باره کې اوږدې خبري را سره وکړې. زما د اشنا په حضور کښې، اطمینان راکئ، چې تر پخواني کار به زیاته تنخا او امتیازات درکوو. کله چې مې د دوی غوړې وعدې، محترمانه چال چلن او د کراچې په نسبتاً منظمه او پاکه سیمه کې مفشن دپترونه ولیدل، بېله ځنډه مې د کار شرو کولو موافقه ور سره وکړه.

د کمپنۍ په مرکزي دپتر کې لس – یوولس کسه مامورین پورته کښته کېدل؛ خو بېله چایو څښلو، یو و نیم تلیفون کولو او قلمک وهلو د چا د کار او مسوولیت سهي دَرَک نه مالومېدئ. کله چې به مې دې بېنظمۍ او بېمسوولیتۍ ته وکتل، پر خپل را تګ به پښېمانه سوم. هغه ملګري ته به مې هم په دې اړه وخت و نا وخت ګیلې کولې، چې دلته یې راوستئ وم. هغه به په خندا خندا را ته ویل: خان صاب! دا مالکان کروړپتیان دي.

تې د مامورینو په بېنظمۍ او نورو خبرو سر مه ګرزوه؛ که کار وکې که نه تا ته خپله تنخا درکیي؛ تې نور څه کیې؟!

میاشت تېره سوه؛ او د تنخا اخیستلو ورځ را و رسېده. تر وعده سوو پیسو یې پینځه سوه کمي را ته حواله کړي وې. کله چې مې د دپتر له ځینو مامورینو سره خبره وکړه، هغو هم د ورته دوکې یادونه کوله. پینځه سوه روپۍ و هر چا، په تېره بیا هغه افغان مهاجر ته، چې د شلو اړتیاوو غم ور سره ؤ، ډېري زیاتي پیسې وې. په خښم او عصبانیت سره یې دپتر ته ورغلم؛ او د خپلي تنخا د کمښت علت مې وپوښتئ. ده ول زموږ کمپنۍ په تاوان کې ده. تر دې زیاتي نسو در کولای. ما ورته و ویل: دا چې له پاکستاني مامورینو سره دي اول څه ژبه کړې وه؛ خو اوس څو تنخا ورکیې، هغه زما کار نه دئ؛ ځکه هر څوک په خپلو حقوقو او مسوولیتو ښه پوهېږي؛ مګر زه تر خپلو حقوقو په هیڅ وجه نه تېرېږم. دا کار د هغه چا دپاره، چې د اسلام او اسلامیت غټې داوې (دعوې) کیي ډېره بده او شرموونکې خبره ده. ده را ته و ویل: څه دي و ویل؟ زما پر اسلام او مسلمانۍ دي تعرض وکئ؟! ما ول دا خو اسلام او مسلماني نه ده، چې د بېوزلو مامورینو د بچانو پر رزق و روزۍ خېټه اچیې. تر تا خو هغه ږیرخریلی مالک ډېر ښه ؤ، چې نه یوازې یې د چا پر حقوقو خېټه نه اچوله، بلکې کله کله بې په یو و نیم بخششیو او سوغاتونو هم نازول. زه ستا په ګټه او تاوان څه اړه لرم. خپل کار کوم او د کار په بدل کې مې تنخا غواړم. البته، هغونه تنخا چې په اوله ورځ مو د څو کسانو په حضور کې سره منلې ده. ده ویل: پام کوه تر خپلو حدودو تېرې و نه کې! ما ول: ښاغلې ثقافه! د کومو حدودو خبري کیې؟! ده ویل: څه څه وزه! ستا سره خبري کول بې

ګټي دي. ما ول: زه هم تا غوندي درواغجن او مکرجن پر مخ مین نه یم.

څه سر به مو خوړوم تر دې لفظي شخړې وروسته مې نور په دې شرکت کې د یوې ثانیې پاته کېدو زغم نه لاره. د دېټر له ټولو مامورینو سره مې په هغه ګړۍ خدای پاماني وکړه. د کمپنۍ منېجر، چې د پاخه عمر هندي ټبره مهاجر ؤ، په پوسهاري را ته و ویل: خان صاب! پوه او تعلیم یافته سړی یې؛ څنګه دې دا ټېروتنه وکړه، چې د خپلو پټانانو کار دې پرېښاوه؛ او له دې کنجوسو عربانو سره په کار کې شامل سوې. زه خبر یم، چې پټانان ډېر مېړه او سخي خلګ دي. نه پوهېږم چې ته ولې څنې خوابدی سوئ یې. ثقاف زما او ځینو نورو همکارانو سره هم ستا په شان دوکه کړې ده. باور وکه، دا اوس هم په بل کار پسې ګرزم؛ ځکه د دې کار په تنخا مې ګوزاره نه کیږي. د دې ښار خرڅونه خو تا ته ښه در مالوم دي. دمګړی همدا کار غنیمت ګڼم؛ خو که خدای بل کار پیدا کئ، یو مینټ هم دلې نه ورته کښېنم. د کمپنۍ ځینو همکارانو پوښتنه کول: خان صاب: بیرته پخوانۍ کمپنۍ ته ځې؟! ما ول په کمو سترګو بیرته پخوانۍ کمپنۍ ته و رسم؟! هغو بېچاره ګانو خو له کاره نه وم جواب کړئ. له همکارانو څخه مې رخصت واخیستئ؛ او د کور پر خوا رااوان سوم.

ما هم د کمپنۍ د منېجر، صدیق بهایي، په څېر کولای سوای حاضردمه همدا کار غنیمت و ګڼم؛ او په سړه سینه په څه بل کار پسې وګرزم؛ خو د خپل طبیعت او فطرت په وجه مجبور وم له دې مکارو او وعده خلافو مالکانو سره، چې لویې لویې ړیرې یې پرېښې وې؛ او د مسلمانۍ غټې غټې داوې یې کولې، پر همدې ځای خدای پاماني وکم.

ستاسي څخه یې څه پټوم، کې ښه بولئ کې بد، له ظلم، ناحقۍ او خیانت سره مصالحه او سازښت زما په وینه او خټه کې هیڅ ځای نه لري. د اصولو او مصلحتو تر منځ انتخاب کې مې همېشه د اصولو لمن ټینګه کړې ده؛ او په دې کار کې مې کله کله درانه تاوانونه هم زغملي دي.

د دې فکري جوړښت له مخې مې د ثقاف شرکت تر ظلم او ناحقۍ، بېکاري ښه و بلله. البته، په دې حقیقت مې ښه سر خلاص ؤ، چې په پاکستان، خاصتاً کراچي کې ما غوندي بېچاره مهاجر ته اوږده بېکاري اسانه خبره نه ده. د کور کرایه، خوراک و پوښاک، د اولادو د مکتب پیسونه، د ډاکټر او دوا خرڅونه، ټول هغه څه وه، چې تر ډېره د کور په سپما سوو پیسو نه سمبالېدل. په دې خاطر مي د بېکارۍ له همغو لومړیو ورځو څخه د بل کار په موندلو پسې لستوني را ونغښتل. د اوردو ژبې «جنګ» او انګرېزي ژبې «ډان» له اعلانو څخه مې شرو وکړه. د «جنګ» ورځپاڼې د هغو ورځو په یوه ګڼه کې د کمپیوټر اینسټرکټر یا لارښود د وظیفې اعلان خپور سوئ ؤ. مېرمنې مې پوښتنه وکړه:

– څه دي وکړه، شی می دي پکښې پیدا کئ؟

– د کمپیوټر اینسټرکټر یوه ویکنسي (کمبود) اعلان سوې ده، خو ځای یې یو څه لیري دئ.

– چیري دئ؟

– د «صدر» د سي بریبز اسپتال و څنګ ته. سره له هغه هم په دې ارزي، چې یو پلا ور سم؛ او له نیژدې یې وګورم. خبره یوازي د وظیفې د لیریوالي نه ده. اندېښنه مې دا ده، چې زه به د کمپیوټر اینسټرکټر د کار تر

عهدې و وتلای سم که یا؟ د کمپیوټر په کورسو خو مي دوه - دوه نیم زره کلداري ولګولې. تا ته مالومه ده، چي د کمپیوټر په کار کي تر تیوری عملي تجربې ډېره مهمه ده. د کمپنۍ پخواني مالک ناځوانه هیڅکله د عملي کار چانس را نه کړ.

سبا سهار مي پاک کالي وا غوستل؛ او د لسو بجو په شاوخوا کي سیده د «صدر» په سروېس کي سپور سوم. زموږ له کور څخه تر «صدر» پوري تقریباً یو ساعت لار وه. سهار او مازیګري مهال ښایي تر یوه ساعت هم ډېره وه. په لار کي به د ژړو بسو او میني بسو له ډېرو، ګرمۍ، ګڼه ګوڼي او تعفن څخه د مساپرو ساه درېدله. ما ته شخصاً د کراچي او کوټي تر منځ دیرلس- څورلس ساعته سفر دونه سخت او ربړونکی نه تمامېدئ لکه د «سوهراب ګوټ» څخه تر «صدر» پوري شپږ

- اووه میله سفر.

خیر، یو ساعت وروسته کلېنر د «صدر» نارې پیل کړې؛ او زه پخوا لا د دې ملک له دود او دستور سره سم وکښته کېدو چمتو ولاړ وم. د سروېس له تمځای څخه د کمپیوټر تر کورس پوري لږ و ډېري لس دقیقې د پښو لار وه. د څو پوړیزي ودانۍ پر مخ، د کمپیوټر اکاډیمۍ غټه لوحه، له لیري څخه را ښکاره سوه. د دریم پوړ په دالېز کي مي تر دوري هوري کتو وروسته د اکاډیمۍ دپتر پیدا کړ؛ او تر ساه تازه کولو وروسته سیده د مېز تر شا ناست توربخونه، چاغ، ګیردي سړي ته ودرېدلم:

- سلام علیکم!

- وعلیکم سلـــام!

پاکستانیانو به د سلام ټکی معمولاً د سین په سکون او د «لا» په تشدید او کشولو سره وایه.

- په «جنګ» ږپېر کي ستاسي و اعلان سوي ویکنسۍ ته راغلئ یم.

په دې چي د پاکستان لوستی قشر، په خبرو کي د زیاتو انګرېزي ټکو کارول، د متکلم د پوهي او کمال نخښه ګڼي، نو ما هم په خبرو کي د انګرېزي ټکو او عبارتو و کارولو ته ډېر زور ور کړئ ؤ.

- ډېر ښه، ډېر ښه.

ده په اوردو ټکو را غبر ګه کړه.

- د کار شرایط مو څه دي؟

- ولا د کار دپاره خو تر اوسه پوري څه خاص شرایط نسته.

- مخسد مي دا دئ چي په کورس کي د کمو ژبو او پروګرامو و اینسټرکټر ته ضرورت لرئ؟ په هفته کي څو ورځي او په ورځ کي څو ساعته درس ور کول کیږي؟ تنخا له څه قراره ده؟

- خان صاب! تاسي خو ډېرو ارزښتناکو ټکو ته ګوته ونیوله؛ متأسفانه تر اوسه د شاګردانو هیڅ خوند نسته. هیچا مراجعه نه ده کړې.

- عجبه ده تاسي په اخبار کي باقاعده اډ (اعلان) خپور کړئ دئ؛ او زه هم د کراچي له آبله سره د همدې اډ په خاطر تر دې ځایه راغلم.

- ستاسي خبره بېخي ټیک ده؛ خو موږ تصور نه کاوه، چي په اخبار کي به د اعلان له خپرېدو سره، اینسټرکټر هم سمدستي پیدا سي. دا خو د فخر ځای دئ، چي تاسي غوندي تعلیم یافته شخص زموږ سره کار وکي. په دې خاطر تر هغه مهاله چي شاګردان پیدا کیږي، کله نا کله د تلیفون په ذریعه پوښتنه وکئ!

- و به ګورو.

په نسبتاً ماتېجنه لهجه مي جواب ورکئ. په زړه کي مي ویل: پر پدره مو لانت

(لعنت) سه! شاگرد مو دَرک نه لري، خو تاسي وخت بیا د اینستر کتر اعلان خپور کړئ دئ. دې خبري کټ مټ داسي مانا درلوده، لکه څوک چي یو نال (نعل) و لري، د پاته درو نالونو او یوه آس په پیدا کولو پسي دوري هوري تلاښونه کیي.

د تش په نامه اکاډیمۍ له دپتره را کښته سوم؛ او په نامېندۍ سره د سروېس د تمځای پر لور رهي سوم. د «صدر» تر هوایي پله لاندي د پېښوریانو د خورا خوندورو پسته یي شېریخو یو کوچنی دوکان ؤ. هر کله چي به یوازي، له ملگرو یا کورنۍ سره په څه کار پسي «صدر» ته تللم، ارومرو به مي د دې دوکان د شېریخو خوند کتئ. تر دمراستۍ او حلق لندولو وروسته د موټر و تمځای ته ورغلم. له نېکه مرغه په څو دقیقو کي د «سوهراب گوټ» نسبتاً تش سروېس را و رسېدئ. څو شېبې وروسته و «کریم آباد» ته ور رسېدو، چي د «سوهراب گوټ» او «صدر» په منځ کي ؤ. د «کریم آباد» له بس سټاپ سره مي نابره د کتابو پر هغو رېړییو ستر گي ولگېدې، چي کله نا کله بې و لیدو ته ورتلم. په داسي حال کي چي د ټول سفر کرایه مي ور کړې وه، خو سره له هغه هم په مینه مینه له سروېسه کښته سوم: او له پخواني عادت سره سم څه گړی د مستعملو کتابو په څو رېړییو کي، په کتاب لټلو بوخت سوم.

د «حسن سکوېر»، «کریم آباد» او «واټر پمپ» د کتابو په رېړییو کي مي کتنه او پلټنه د کراچي د څو کلن مهاجرت تر ټولو په زړه پوري بوختیا وه. البته، د کار او روزگار په ورځو کي به دا سرگرمي یوازي د جمعي و ورځو ته پاتېدله. کله کله خو به د نورو مصروفیتو په وجه، حتا په جمعه هم وخت نه ور ته پاتېدئ.

څه لنډې او اوږدې به در ته کوم، د «کریم آباد» له دوو رېړییو څخه مي دوه ښېل کتابونه رانیول؛ او له همغه ځایه بیرته سروېس ته پورته سوم؛ او په تقریباً پینځلسو دقیقو کي کور ته و رسېدم. مېرمني مي تر دروازې خلاصولو وروسته سمدلاسه پوښتنه وکړه:

– شېر راغلې که روباه؟

– ته څه فکر کیې، چي شېر به یم که روباه؟

– څه و وایم؟ له کتابو او خندا څخه خو دي داسي مالومېږي، چي شېر به راغلئ یې.

– که کیسه در ته وکم، له درد او خښمه به هم ژړا در ځي هم خندا.

– و وایه چي څه کیسه ده.

– هیڅ تصور مي نه کاوه، چي څوک دي و «جنگ» غوندي معتبرې ورځپاڼي ته د کار اعلان ورکي، خو کار دي به دوربین کي نه مالومېږي. زه د درست کور د ډوډۍ، د کوچنیانو د مکتب د پیسونو، د کور د کرایې او شلو نورو اړتیاوو غم اخیستئ وم، خو ده شوده را ته و ویل، چي د شاگردانو تر پیدا کېدو پوري باید صبر وکم. کله چي مي د خپلو اقتصادي پرابلمو په اړه څو خبري ور ته وکړې، د بېچاره خوله خلاصه پاته سوه.

– څونه خره خلگ دي!

– خره یې بولې که سیانه، خو باور وکه چي وروسته وروسته مي تر ځان پر ده ډېر زړه و سوځل سو؛ ځکه د دپتر کرایه او د برق و تلیفون محصولونه پر حواله وه، حال دا چي د گټي وټي یې هیڅ دَرک نه ؤ. خدای دي د هر بېچاره چاره گر سي!

–آمین.

نور بیا ...

ډاکټر عبدالرازق پالوال

# پوهاند محمدعلي میوندي

نه پوهېږم چې پوهاند صاحب خپل تحصیلات چیري او په څه مسلک کښي ئې کړي ول، خو دء خپلي لیکني په انګلیسي ژبه کولې. دی په ادبیاتو او اجتماعي علومو پوهیځ کښي د معاصر افغانستان د تاریخ استاد ؤ، او خود ئې نو د تاریخ په څانګه کښي استادي لرله. دی اجتماعي او د خواږء مجلس خاوند ؤ. زء یوه پلاکور ته هم ورغلئ وم. په دغه ورځ مي د دء په کوټې کښي، بېله د دء له هردلي (خدمتګار) څخه، بل هیڅوک نه ولیدلای سوای. نو نه پوهېږم چي دی په دغه کوټې کښي یوازي اوسېدئ، که ئې د کورنۍ غړي په دغه ورځ په کار او روزګار پسي دباندي وتلي ول. په پوهنتون کښي یوه نجلۍ محصله وه، او له اورېدو څخه چي د پروفیسر میوندي صاحب په کورنۍ پوري ئې اړه لرله. پوهاند میوندي سپین پوستی ؤ، خو نجلۍ بوره وه.

پوهاند صاحب میوندي د پادشاه امان الله خواخوږئ پالونکئ ؤ. دء به ډېر کله د هغه د کارنامو، پلانونو، او پېښو څخه بیان کاوء. یو دا چي هغه غوښتل چي د دارالامان او کابل تر منځ ئې ترام په کار اچولئ وي چي ځیني وسایل ئې لا ورته وارد کړي هم ول.

دا چي پادشاه امان الله افغانستان د انګلیسانو له امارت څخه وایستئ، او آزادي ئې ځني واخسته. بل دا چي دء د جرمني سفر ئې وکړ او هغه زمان جرمني جهاني قدرت او د انګلستان سیال ؤ. ځکه نو انګلیسانو نه غوښتل چي په افغانستان کښي یو آزاد حکومت وي، بیا په سرې سره چي ئې له تزاري روسیې سره هم مناسبات ټینګ کړي وي. هغه زمان د روس او انګلیس تر منځ د اسیائي هیوادو نو د نیولو مسابقه روانه وه.

لا هاله چي انګلیسان په ۱۷۵۳ع کښي د بنګال له جهیل څخه د هند و نیمي قارې ته وروختل، د ۱۷۷۵ع تر پایه پوري ئې ټول بنګال ونیوئ. تر دغه وروسته، کال په کال مخ و لوېدیځ ته د افغانستان پر خوا مخ پر وړاندي تلل او هر کال ئې د هند یو ولایت نیوئ. دوی په ۱۸۹۳ع کښي د افغانستان ختیځ ولایتونه، چي نن پښتونخوا بلله کیږي نیمګړې اشغال کړي ول. دا په دې مانا چي مالیات ئې و افغانستان ته ورکول او سیمه د دوی په لاس کښي وه. انګلیسانو پر امیر عبدالرحمن باندي له لویه سره څخه لا دا ایښې وه چي د ډیورنډ کرښه به ورسره مني.

روسیه چي د انګلستان سیاله وه، نه هم ناخبره وه او نه هم لاس تر زني لاندي بیده ناسته وه. روسانو هم سم د لاسه مخ د سهېل – ختیځ پر خوا باندي و خپلو لښکرونو ته

حرکت ورکړ. دوی هم کال په کال د منځنۍ اسیا یو – یو هیواد اشغالاوه. کله چې انګلیسان د افغانستان و سهېل ختیځو سرحداتو ته راورسېدل، روسان ئې و شمالي سرحداتو ته ورسېدل. انګلیسانو چې پښتونخوا له افغانستانه څخه ونیوله او بېله کړه، روسانو هم پنج ده (پنجده) له افغانستان څخه ونیوله او ځني بېله ئې کړه.

کله چې شاه شېرعلي په زهرو سره وواژء سو، او امیر عبدالرحمن د افغانستان پر اورنګ کښېنوست، د ډیورنډ کرښې پښتانه توکوم ئې نیمه خوا کړ. کله چې د امیر عبدالرحمن زوی امیر حبیب الله د افغانستان پر اورنګ کښېنوست او بالآخره د لغمان درې د الیشنګ درې په ګوشته کښې وویشته سو. شاپور امان الله د افغانستان پر اورنګ کښېنوست او له انګلیسانو څخه ئې د افغانستان آزادي په ۱۹۱۹ع کال کښې واخیسته. دا چې بادشاه امان الله غوښتل پښتونخوا ئې هم له انګلیسانو څخه آزاده کړې او اخستې وي، دء د دغه کار له پاره و پیاوړي زورور ملګري ته اړتیا لرله چې هغه زمان جرمني ؤ.

کله چې بادشاه امان الله و جرمني ته سفر وکړ او د هغه مملکت له سرانو سره ئې لیدني کتني ولرلې، انګلیسان ئې اندېښمن کړل، ځکه ئې نو ډېر ځایونه تر حکومت لاندي نغمونه وکښل، څو نه ګانه جرمني افغانستان د منظم لښکر او سپاه لرونکئ ګرځولئ نه وي چې د جرمني د وخت په عصري وسله او درسته سره سمبال وي. هاله به نو "اوبه تر ورخ تېري وي" ځکه نو تر وخت دمخه باید دغه ټولواک بې واکه سوئ وي. په افغانستان کښې باید داسي څوک واکمن وي چې هغه د دوی دوست وي. د دغه کار له پاره دوی تر مخه لا هغه څه وکړل چې د دوی هیلي او غوښتني ئې ورتر سره کولې.

په پغمان کښې د انګلیسانو د سفارت غړو د افغانستان یا لا کابل د والیبال له ټل سره سیالي (مېچ) لرله. د بازۍ قاضي هم افغان ؤ او وایي دی داسي پوهول سوئ ؤ، چې بازي ئې باید هرومرو و افغانستان ته ورګټلې وي چې داسي هم پېښه سوې وه. دا چې له انګلیسانو څخه د افغانستان ټل بازي ګټلې وه، نو د انګلیسانو سفیر د بازۍ په پای کښې ویلي وه: که مو څه هم په کوچني میدان کښې بازي بایلوله، خو په لوی میدان کښې به ئې هرومرو ګټو. دغه د پوهاند محمدعلي میوندي د خولې وینا وه.

که پښتانه د فهم او شعور خاوندان وای، دوی به د د باندنیانو شومي نقشې او دسیسې په افغانستان کښې پلي کړي نه وای. دوی که خواران دي له خپله لاسه دي، که اړ او محتاجان دي له خپله لاسه دي. او که به ظلمونه پر کیږي دغه هر څه ئې له خپله لاسه څخه دي. دوی باید هیڅکله ویلي نه وي چې: "خدای راپېښه کړې ده". خدای تعالی په قرآن شریف کښې فرمایلي دي چې: "زء پر چا باندي ظلم نه کوم. دا تاسي یاست چې پر خپلو ځانو باندي ظلم کوئ". پښتانه د خپل جهالت له اسیته څخه پر خپل ځان باندي ظلم کوي. بد ظلم ئې دا دئ چې بې کسبه ؤ بې کماله خواران دي، او لا سره وژني هم. عقل په کار دئ.

د پوهاند میوندي په اړوند به ځینو استادانو ویل چې حکومت دی نه پرېږدي چې له افغانستان څخه وتلئ وي. مراد یا لا بیان به ئې دا ؤ چې له دء سره تاریخي اسناد او شواهد سته څو هغه ئې و د باندنیانو ته افشاء کړي نه وي. خو په ظاهرشاهي لسیۍ کښې دی د امریکا و متحده ایالاتو ته دعوت کړء سو او

هورې ئې په ځينو معتبرو پوهنتونو کښې پر افغانستان باندې بيانونه Lectures ورکړل.

پوهاند ميوندي به خود له پخوا څخه هم ځيني خوشمرې پيسې لرلې. خو د دې کورني هردلي (نفر خدمت) ئې دغه پيسې ځني ليدلي وې. د کابل پوهنتون د استادانو تر منځ داسي ويل کېدل چي د دې هردلي دی پر دغو پيسو باندي وواژه. ويل کېدل چي پوليسو هغه د دې کورنی هردلی نيولی او هغه خپل جنايت ئې منلئ ؤ.

جنايتکار بايد د دې پيسې غلا کړي او تښتېدلئ به واى، نو دی ئې ولي واژه؟ که به پوهاند صاحب بکس او خونه قلف کول. کيلي ئې په زور ځني اخستلاى سواى. هغه زوړ کاواکه سړی ؤ، چي جنګ او مقاومت ئې ورسره کولاى نه سواى. نو دا ممکنه نه وه چي دی دي په زور ورسره وهلو او مقاومت کښي وژل سوئ وي، هغه آرام او صالح سړی ؤ. د بدو سړی نه ؤ. هردلي ئې د هغه په غياب کښي د کړکۍ هينداري ماتولاى سواى، او غونډ بکس ئې ځني وړلاى سواى که به ئې پيسې ځني کښلاى نه سواى.

***

ليکوال: جبران خليل جبران
مترجم: احمدالله څرګند

## کله چي مي غم وزېرېد

کله چي مي غم پر نړۍ سترګي روڼي کړې، ښه مي وپالی او په مينه مي ئې ساتنه وکړه.

زما غم هم لکه د نورو ژونديو موجوداتو په څېر وده وکړه، ښکلی، قوي او په خوښيو اباد سو.

ما او زما غم له يو بل سره مينه درلوده، پر موږ چاپيري نړۍ سره مو مينه درلوده؛ ځکه چي زما غم مهربانه زړه درلود او زما زړه هم د غم سره نرم سوی وو.

ما او زما غم چي به کله هم خبري کولې نو ورځي به مو الوتلې او شپې به مو له خوبونو ډکېدلې؛ ځکه چي زما غم ژبغړاند وو او زما ژبه هم د غم سره روانه سوې وه.

کله چي به ما او زما غم سندري سره ويلې، نو زموږ ګاونډيان به په خپلو کړکيو کي غوږ وه، اورېدلې؛ ځکه چي زموږ سندري د سيند په څېر ژوري او نغمې مو له نااشنا يادګارونو ډکي وې.

کله چي به ما او زما غم څنګ پر څنګ قدم واهه، نو خلکو به ځير ځير او په مينه راته کتله او په ډېرو خوږو الفاظو به ئې زموږ په اړه خبري کولې. هلته داسي خلک هم وه چي کست ئې راکېدی؛ دا ځکه چي غم له اشرافو څخه وو او زه د هغه په سر سرلوړی وم.

خو زما غم مړ سو، د نورو ژونديو موجوداتو په څېر، زه ئې يوازي کړم، چي يوازي له ځان سره فکر او خبري وکړم.

اوس چي خبري کوم، نو پر غوږو مي ډېري درنې پرېوزي.

چي سندري وايم، ګاونډيان غوږ نه ورته نيسي.

او چي په کوڅه کي روان يم، هيڅوک نه راته ګوري.

يوازي په خوب کي ږغونه اورم چي په زړه سوي سره وايي: "وګورئ، دغه بيده سړی هغه څوک دئ چي غم ئې مړ سوی دئ".

***

لیکوال: ډاکټر نثار احمد صمد

# لومړی او وروستی ملاقات

**(زما د ځوانۍ یوه خاطره)**

بسم الله الرحمن الرحیم ـ کله چې زه د شاهي رژیم او مرحوم داود خان د جمهوریت پر مهال د کندهار په میرویس نیکه لیسه کې متعلم وم، نو په (هیواد) ورځپاڼه او (ژوندون) مجله کې مي اشتراک درلود. دا بهیر تر دوولسم صنف پورې جاري وو. ډېرو زده کوونکو حتی معلم صاحبانو به هم هغه مطالعه کوله (وروسته د هیواد ورځپاڼې نوم په جمهوریت سره واووښت).

یوه ورځ مي د ژوندون مجلې د ۱۳۵۰ لمریز کال په لومړۍ ګڼه کې یوه لیکنه ولوستله چې د فلسطینیانو او یهودیانو سابقه ئې څېړله. په دې لیکنه کې مي د لومړي ځل له پاره ولوستل چې دا دواړه طایفې په فلسطین کې څلور زره کاله په ګډه اوسېدلي دي، خو پردیو هغوی سره مخالف او متخالف کړل. آن دا چې هغوی دا کا زامن یعني تربرونه هم دي....

دغه موضوع زما له پاره ډېره نوې او دلچسپه وه چې په دوو ګڼو کې نشر سوه او ما په ډېر شوق او ذوق سره لوستله. اوس مي په یاد هم نه دي چې هغه ژباړه وه او که د یو افغان لیکنه وه. د لیکوال یا ژباړن نوم مي هم په یاد نه دي. څنګه چې دا موضوع زما له پاره ښه معلوماتي وه، نو دواړې برخې مي راسره وساتلې.

څلور – پنځه کاله وروسته کابل پوهنتون ته شامل سوم او په ۱۳۶۰ لمریز (۱۹۸۱ میلادي) کال کې فارغ سوم. دا مهال د شوروي نیوني سره ښه د خرپ جنګ روان وو. رژیم دا فیصله کړې وه چې د هر پوهنځي فارغان باید اول دوه کاله عسکري وکړي، بیا کومه رسمي یا غیر رسمي وظیفه پیل کړي. ما نه غوښته چې عسکري وکړم. نو د پوهنتون په هویت کارډ کې مي لاس وواهه او په اعظمي بس کې کندهار ته راغلم. حیران وم چې اوس نو څه وکړم. ځینو اندېوالانو او خپلواتو به راته ویل چې زه به دې د فلاني افسر سره په عسکري کې شامل کړم چې هیڅکله به جبهې ته نه ځې. په پاکستان کې به ځینو خپلوانو احوال رالېږی چې په کندهار کې څه کوې چې پټ ناست یې، کویټې یا کراچي ته راسه. زه حیران وم چې کومه خوا انتخاب کړم. بالاخره مي فیصله وکړه چې کویټې ته به ځم او هلته به اوسېږم.

نو یوه ورځ مي خپل کتابونه او چاپي مواد، مجلې او اخبارونه کتل تر څو غیر ضروري شیان ئې له منځه یوسم او ضروري مواد ئې وساتم. په دې کتلو او چیک کولو کې مي د ژوندون مجلې دواړې هغه شمارې ولیدلې چې د فلسطینیانو او یهودیانو د سابقې په باره کې وې او د لسو – یوولسو کالو راهیسي مي ساتلي وې. بس یو دم مي بې اختیاره فیصله وکړه چې پاکستان ته نه ځم بلکې همدا موضوع به څېړم او شنم. ځکه د اړونده موضوع په ارتباط مي نور مواد او کتابونه

هم پیدا کړي او ساتلي ول.
نو هغه وو چې په کور کې د یو بندي غوندي کښېښستم او په میاشتو میاشتو مې آن خپله کوټه هم و نه لیدله. دا ځکه چې د تلاښۍ ځخه بیرېدم داسې نه چې هغوی مې ونیسي او په عسکري کې مې شامل نه کړي. نو ټوله ورځ به مې همدا موضوع ځېړله او لیکله.
په دې ارتباط به یوه لنډه خاطره ولیکم: یوه ورځ په خونه کې مختلف کتابونه او مواد شاوخوا هوار راته پراته ول چې هر یو خلاص او پرانیستی وو. دا مهال نابېره د عسکرو تلاښي راغله (په اصطلاح چاپه ئې ووهله). هغوی به عموماً دوه شیان تلاښي کول: بې اسناده ځوانان به ئې جبراً عسکري ته شاملول او کور به ئې د وسلو له پاره تلاښي کاوه. زه حیران وم چې چیرې پټ سم. هیڅ موقع په لاس رانغله، نو مجبوراً ځای پر ځای کښېښستم. څو ثانیې وروسته درې ـ څلور وسله وال پوځیان په خونه راننوتل. هغوی د زیاتو کتابو په لیدلو حیران سول او پوښتنه ئې راځخه وکړه چې: «چه میکنید؟» ما ورته وویل چې یو کتاب لیکم. د هغوی بله پوښتنه دا وه چې: «اسناد عسکری دارید؟» ما ورته وویل چې هوکې. خو هغوی راځخه و نه غوښتل بلکې خپل قوماندان ئې راوباله. هغه چې په رتبه جګړن وو، راغی. کله چې ئې ټوله خونه په کتابو فرش ولیده نو یو ځل به ئې ما ته ځیر ـ ځیر وکتل بیا به ئې هوارو کتابو او زما تر څنګ د کتابو غټې الماری ته وکتل چې دروازې ئې خلاصې وې او د کتابو ځخه ډکه وه. صرف یوه پوښتنه ئې راځخه وکړه چې: «اسناد داری؟» ما ورته وویل چې هوکې او کله چې مې جیب ته لاس کړ تر څو هماغه د پوهنتون ساختګي کارډ راوباسم چې بې له ځنډه ئې رغ راباندې وکړ چې مه ئې راباسه، ضرورت نسته. دغه افسر راته وویل چې زما نوم حکیم دئ او په رتبه جګړن او د مزار شریف اوسېدونکی یم. دا چې ته په داسې خرابو او جنګي شرایطو کې څراغ (الیکین) ته ناست یې، علمي کار او تحقیق کوې نو که اسناد هم و نه لرې څوک دې عسکري ته نه سي بېولای، ښغمه اوسه. وروسته ئې وویل چې آیا اجازه ده دا کتابونه وګورم؟ ما ورته وویل چې هو، ولې نه. هغه د الماری د کتابو عنوانونه وکتل او کله چې ئې مخ راواړاوه نو سترګې ئې لږ نمجنې غوندې سوې او پر عسکرو ئې امر وکړ چې دا کور تلاښي نه کړئ او درووزئ. وروسته ئې خپل آدرس، او د پوځې قطعې نوم راکړ او په آینده کې ئې د هر ډول کومک ډاډ راکړ. بیا ئې په غېږ کې ونیولم او د خدای په اماني ئې راسره وکړه او ټوله ووتل.
زما یو اخښې دئ چې په رتبه جګړن او مسلک ئې لوژستیک وو. د دوی یونټ د کندهار هوایي ډګر ته مخامخ د تېلو زخیره جوړوله. هغه تر دې پېښې څو ورځې وروسته راته وویل چې زه به جعلي ترخیص درته جوړ کړم او که د تلاښۍ عسکرو راګرځولې دا ترخیص ورښکاره کوه او زموږ یونټ ورمعرفي کوه. دا مشوره مې خوښه سوه او همداسې مو وکړه. وروسته له دې آزاد سوم او دباندې به راوتلم.
په دې شپو ورځو کې زما پلار یو ۳۰۲ بس رانیوی او هغه ئې په اعظمي ترانسپورټ کې شامل کړ او زه به کابل ـ کندهار او هرات ته ورسره تللم. پر لارې به د پوستو عسکرو د اسنادو غوښتنه راځخه کول نو ما به په جرئت سره هماغه ترخیص ورښکاره کاوه.
اوس به په دې ارتباط هم یوه جالبه خاطره بیان کړم: یوه ورځ چې زموږ بس د همېشه غوندې سپرلې په کابل کې کښته کړل او موټر مې مستري ته ودراوه، نو په (ده افغانانو) کې روان وم. کله چې د مټرو (زیر زمیني) ځخه تېرېدم نو د تلاښۍ عسکرو ودرولم او اسناد ئې راځخه وغوښتل (دا ځای ښه لومه وه او ډېر کسان به ئې همدلته نیول).

ما چي کله جبب ته لاس کړ تر څو اسناد راوباسم، چي اړونده عسکر ته مي وکتل یو څه آشنا په نظر راغی. هغه زما هم صنفي (ټولګی وال) وو چي څو میاشتي مخکي دواړه د کابل پوهنتون د عین فاکولتې د عین صنف څخه په عین ورځ فارغ سوي وو. ښه می په یاد دي چي هغه محمد سعید نومېدی او د جلال آباد اوسېدونکی وو او ما ښه مسخرې هم ورسره لرلې. ما څکه ژر و نه پېژندی چي اوس عسکر وو او پخوانی څېره ئې نه وه . ما چي غوښته ترخیص راوباسم، هغه خپل یو ملګري ته وویل چي ته ورته ګوره چي دی به څه شي رانښکاره کړي؟ په دې خبره سره ما په غور ورته وکتل او ومی وپېژندی چي محمد سعید (زما هم صنفي) دئ. نو ښه د غېږ روغبړ مو وکړ، خو هغه راته وویل چي خامخا به خپل اسناد راښکاره کوې او ببغمه اوسه، څوک دي نه راڅخه بیایي. ما هم ترخیص راوکیښ او ورښکاره مي کړ. هغه ترخیص په ځیر وکوت او خپل ملګری ته ئې ورښکاره کړ او ورڅخه وئې پوښتل چي آیا دا ساختګي معلومېږي؟ هغه هم په غور سره واړاوه راواړاوه او وئې ویل چي دا خو بالکل اصلي ښکاري. ما ورته وویل چي یاره! ترخیص راکړه نور ئې نو مه ګوره. خو هغه راته وویل چي خپل افسر ته ئې هم ورښکاره کوم لاکن ته ډاډه اوسه چي څوک دي نه سي راڅخه نیولای. دواړه د ده افسر ته ورغلو او هغه ته ئې ترخیص ورښکاره کړ او ورڅخه وئې پوښتل چي آیا دا ترخیص جعلي دئ که اصلي؟ افسر ئې ورته وویل چي دا خو سل په سلو کي اصلي دئ، ورنې کړه چي ځي. ده خپل افسر ته وویل چي دا ځوان او زه هم صنفیان او څو میاشتي مخکي په یوه ورځ فارغ سوي یو، خو زه دا دئ عسکر یم او دی ترخیص لري! دا کندهاریان بلاوي دي، موږ عسکري کوو، خو دوی آزاد ګرځي! افسر ئې هم چي پښتون وو، داسي لنډ او جامع ځواب ورکړ: مړه، که نه! افغانستان یعني کندهار او کندهار یعني افغانستان! وروسته مو ښه ډېري ټوکی او خنداوي سره وکړې او بیائې رخصت کړم.

په هر صورت ، زما یو مهربان اکا (یعني د پلار مي د اکا زوی) وو چي عبدالرازق واصفي نومېدی او فقط یوه میاشت مخکي یعني د اپریل پر لسمه په کراچي کي وفات سو، الله دي ئې وبخښي. دی په کاکا رازق سره مشهور وو او د کندهار او افغانستان یو پخوانی معلم وو چي خورا ډېر تعلیم یافته اشخاص ئې د شاګردی افتخار لري. هغه ته خپل یو شاګرد مجید سربلند (چي د اطلاعات او کلتور وزیر وو) په خپل وزارت کي دنده ورکړې وه او د «ریاست ګرځندوی» د اداري مدیر په حیث ئې مقرر کړی وو. زما دغه مهربان اکا راته وویل چي د موټر سره نور مه ځه او راځه. لاره خطرناکه ده. زه به تا په ګرځندوی ریاست کي د اجیر په حیث استخدام کړم (ما رسمي وظیفه ځکه نه سوه اجراء کولای چي عسکري مي نه وه کړې او ترخیص د خاد له خوا تفتیش کېدی). څنګه چي ما جعلي ترخیص درلود نو موافقه مي ورسره وکړه. هلته ورغلم، د انګریزی ژبې امتحان ئې راڅخه واخیست او بالاخره د ټوریستي خدماتو په شعبه کي د قراردادي اجیر په حیث مقرر سوم چي ټوله ورځ به بېکاره ناست وم دا ځکه چي د شورویانو سره د مجاهدینو جنګ روان وو او بهرني سیلانیان او ټوریستان نه راتلل.

دا زما له پاره بهترینه موقع وه نو ځکه مي هره ورځ په دفتر کي خپله مخکنی ناتمامه څېړنه (یعنی د فلسطینیانو او یهودیانو سابقه) همدلته لیکله. هر مامور او کارمند به راته ویل چي ته ولي دا بې ارتباطه موضوع څېړې؟ په افغانستان کي د اور سکروټې اوري خو ته د فلسطینیانو او یهودو تاریخ لیکې. ما به معقول ځوابونه ورکول خو هغوی به خندل او ټوکي به ئې کولې.

مهمه خبره دا ده چي لوی استاد علامه حبيبي هم د مجيد سربلند له خوا په همدې وزارت کي د خپل کلتوري مشاور په حيث مقرر سوی وو (سربلند خپل استادان ځکه دلته مقرر کړي ول چي د هغوی احترام ئې پر ځای کاوه). دا ۱۹۸۴ کال وو، چي يوه ورځ علامه حبيبی صاحب نابېره ګرځندوی رياست ته راغی او جالبه لا دا چي برابر زموږ شعبې ته راوخوت. دا زما لومړی ځل وو چي د علامه حبيبی په حضور مشرف کېدلم. هغه د څو نورو اشخاصو په ملګرتيا چي ما نه پېژندل، زموږ د شعبې د مدير سره خبری پيل کړې. خو په څو ثانيو کي ئې زما پر ميز کتابونه او رسالې او ډول ډول مجلې، ورځپاڼي او نور مطبوعاتي مواد وليدل چي تيت او پرک پراته ول. نو په ډېره مهربانۍ او بې تابۍ سره راولاړ سو او زما خوا ته ئې تشريف راوړی او په فارسی ژبه ئې راڅخه وپوښتل چي دا څه شي دي او ته څه ليکې؟ ما بې له ځنډه په پښتو ځواب ورکړ چي يوه تاريخي څېړنه ليکم. هغه بې له دې چي نور څه ووايي يا بې له دې چي بله پوښتنه وکړي زه ئې ټينګ په غېږ کي ونيولم او پر سر او مخ ئې مچ کړم. تقريباً نيمه دقيقه ئې په خپل له شفقته ډکه غېږ کي همداسي ټينګ نيولی وم. زموږ د شعبې مدير ورته وويل چي حبيبي صاحب، دغه ځوان پيژنې؟ خو علامه حبيبی زما څخه هيڅ مخ نه اړاوه او د سر په اشاره ئې هغه پوه کړ چي يا. هغه ورته وويل چي دا د واصفي صاحب وراره دئ. علامه حبيبي چي دا خبره واورېده، نور هم بې طاقته او بېقراره سو او نږدې وو چي وژاړي. هغه ته ئې وويل چي زه همدا اوس د ده د کورنۍ د مشرانو په باره کي يو اثر ليکم او د هغوی حق ادا کوم (چي مطلب ئې د جنبش مشروطيت در افغانستان څخه وو). بيا ئې راڅخه وپوښتل چي د چا زوی يې؟ ما د خپل پلار نوم ور ياد کړ او هغه ژر وپېژندی او څو فاميلي خاطرې او قصې ئې راته وويلې.

وروسته ئې راڅخه وپوښتل چي کومه موضوع ليکې. ما په دوو درو خبرو کي لنډ وضاحت ورکړ او دا مي هم ورته وويل چي انډيوالان او مامورين ټوله مسخرې کوي چي دا څه بې ربطه موضوع څېړم. د علامه حبيبي صاحب تندی ګونجي سو او په قهر ئې وويل چي هغوی نادان او جاهل انسانان دي چي دغسي خبري درته کوي. د هيچا پر خبرو غوږ مه نيسه او خپل کار ته دوام ورکړه. د علامه حبيبي صاحب بله پوښتنه دا وه چي کوم کوم مأخذونه کاروې. ما ژر د هغو ليست ورکړ او ځيني چي تيار موجود ول، ورښکاره مي کړل. هغه دومره خوشحاله او تازه سو چي زه ئې دلته نه سم انځورولای. بيا ئې څلور پنځه نور مأخذونه هم راوښودل او په ډېر شفقت سره ئې راته وويل چي کله دغه مهم اثر تکميل سي د لوستني له پاره ئې ما ته راکړه چي زه يوه سريځه وربانده وليکم او بيا ئې نو چاپ کړه. ما هم ټينګ قول ورسره وکړ او نوره انرژي مي هم واخيسته.

خو متأسفانه چي د علامه حبيبي صاحب سره زما همدا وروستۍ کتنه هم وه. ځکه هغه يوه مياشت وروسته سخت ناروغ او پسی وفات سو خو زما اثر هم ورسره نيمه خوا او په اصطلاح يتيم سو. زما د دغه اثر عنوان (اسرائيل په فلسطين کی) دئ چی په ۱۹۸۵ کی مي تکميل کړ. ښايي په کتابي بڼه به ۴۵۰ الی ۵۰۰ صفحې وي.

کله چی د ۲۰۱۰ په اکتوبر کي کويټې ته تللی وم نو د هغه فوټوکاپي مي واخيسته او روهيال صاحب ته مي ولېږله تر څو يو وخت ئې چاپ کړي، خو دېرش کلنه خطي نسخه ئې زما سره خوندي ده.

هو، الله دي علامه حبيبی او ټول مسلمانان وبخښي. دا ئې زما سره لومړی او وروستی ملاقات وو چي خوږه خاطره به ئې د ژوند تر پايه راسره ژوندۍ وي، والسلام.

عبدالظاهر ځرک

(شېرین عمر چې تېرېږي دریغه دریغه)

# د هرات قیام، ۲۴ حوت

د ۱۳۵۷ش کال د حوت پر درویشتمه د خپلو کارو له پاره هرات ته ولاړم. د شپې رهي سوم، سهار چې د حوت ۲۴مه وه ور ورسېدم. په یوه هوټل کې مې د سهار لمونځ وکړ او چای مې هم وچښلې. د اتو بجو په شاوخوا کې بازار ته راکښته سوم. په بازار کې د پخوا په شان ګڼه ګوڼه کمه ښکارېده. خلګ د دوکانو مخ ته ولاړ وه، هوایي ټکان هم له لیري اورېدل کېدل. خلګو چې ټکان واورېدل بازار خالي سو او خلګ هم ډلي ډلي سره متفرق سول. زه هم د خپل شناخته کور ته ولاړم. دروازه مې وروټکوله، فیض محمد نومېدی، زه چې ئې ولیدم حیران سو. ول: خیر؟

ما ول: د کاروبار له پاره راغلی یم. ده ول: تاسي لکه چې دا آوازې نه دي اورېدلې. ما ول، چې: زه په هیڅ شي نه یم خبر. ده ویل خیر ته راځه چای به وچښو بیا به بازار ته ولاړ سو. د چای تر چښلو وروسته بازار ته ولاړو. دوکانونه ټول تړلي او دوکانداران د خپلو دوکانو مخ ته ولاړ دي. غولې غولې کېږي. جرئت نه سي کولای چې دوکانونه خلاص کې، ځکه آوازه وه چې عمومي قیام پیلېږي.

یو زرهپوش ټانګ راښکاره سو، د هرات په نوي ښار کې یو خلقي چې سره په پټه ئې تر لاس تړلې وه هوایي ډزي وکړې. خلګو ته ئې وویل چې جمع کېږئ به نه. ولاړ سئ. د هرات خلګ ډېر محتاط دي. ټوله ولاړل. زه او فیض محمد هم د کور پر خوا را رهي سولو. په لاره کې مو څه سودا هم راواخیسته، کور ته راغلو. د دوی کور د مخابراتو سره وو، ښه غټ کور ئې وو.

یو ساعت وروسته مو ناري تر غوږ سوې: الله اکبر الله اکبر! له اطرافو څخه په سوونو خلګ مخ پر ښار رامات دي. دولتي ادارو ته ئې اورونه اچول. کوم خلقي چې به په مخه ورتلی هغه به ئې په سوټیانو وژی، دا خلګ چنداني مسلح نه وه. د اکثرو سوټي په لاس کې وه او حتی ترافیکي اشارې ئې هم ماتولې. د بعضو تبرونه او چړې په لاس کې وې.

وروسته دولت آمادګي ورته ونیوله، عسکر ئې ورته خزه کړل او د فیر امر ئې ورکړ. په نتیجه کې زموږ په سوونو خلګ په شهادت ورسېدل. د حکومت ئې هم ډېر ټانګونه په تشو لاسو وروسوځل.

پوره شپږ ورځې دا حال وو او جنګ شروع وو. سهار چې به زورور ټکان شروع سول تر ماخستن پوري. د شپې به آرامي سوه. بیا به سهار وختي ټکان شروع سول تر دا بل ماخستن پوري.

شپږمه ورځ یو څه آرامي سوه. د ۱۳۵۸ش کال د نوروز ورځ وه. حکومت اعلان وکړ چې که څوک له کور څخه راوزي راوتلای سي. ځکه تر دې دمخه ئې اعلانونه کول که هر څوک له کور څخه راووتی وژل کېږي. زه او فیض محمد هم راووتلو، ده ویل یو د غوږو ټیم مي په دوکان کي پروت دئ هغه به راوړو، ویل کور غوړي نسته.

بازار ته چې راغلو ښخي ډېره خرابي

رسېدلې وه. ځای ځای به ويني پرتې وې. سوځلي ټانګونه مو وليدل او ډېرې دولتي ادارې سوځل سوي وې. عسکر ټوله خزه پراته توپک پر ماشه ولاړ وه او بد بد ئې خلګو ته کتل. خير بيرته کور ته راغلو. غرمه مو ډوډۍ وخوړه لمونځونه مو وکړل. ماپښين چاي چښو. نابېره د خلګو ږغونه او د الله اکبر نارې سوې. موږ حيران سوو چي څه پېښه ده. دستي د زرهدار ټانکونو فيرونه شروع سوه. ډېر بد ږغ ئې دئ. زموږ کور ته نژدې ولاړ وه ټوله کور به ئې سره ولړزاوه. وروسته تر ډېرو فيرو او ټکانو زموږ د کور څنګ ته ږغونه سول. د دې ږغو سره جوخت زموږ کور ته هم شل يا دوه ويشت کسه صاحب منصب او عسکر راواوښتل. اکثره په وينو لړلي او زخميان وه.

پوښتنه مو وکړه چي څه پېښه ده؟ وروسته رامعلومه سوه چي د هرات فرقې قيام کړی دئ. هلته ئې روسي مشاورين وژلي وه. بعضې غټ خلقيان ئې هم وژلي وه. د فرقې قومندان سيد مکرم په تېښته ځني تللی وو. دغه عسکر مخ پر ښار راروان سول هغه وو چي دلته د خلقيانو د سخت مقاومت سره مخ سول. دوی مجبوره سول چي شاوخوا کورو ته پناه يوسي. تورن اسماعيل د هرات مشهور قومندان هم په قيام کوونکو کي وو.

موږ اوس حيران يو چي خدايه په دې خلګو څه وکو. د حکومت ياغي عسکر دي. اوس که هغه پر راغله يو لا ولاکه د ژوند ځکه وکو. ډېر د ډېري او وحشت حالت وو. خپله عسکر او صاحب منصب هم په هيڅ نه پوهېدل او تصميم ئې نه سوای نيولای. وروسته تر يوه ساعت يو يو د نورو خلګو کره ولاړل او زموږ کور ئې راپرېښود. د کور خاوند چي تر ما مشر سړی وو او زه نوی ځوان وم او مېلمه وم. د دې پر ځای چي ما ته اطمينان راکړي دی راته په ژړا سو. چي خدايه دا څه حال دئ پر مسلمانانو، ما اطمينان ورکاوه چي اوس خو نو پېښه ده. هر څه چي مو په قسمت کي وي هغه به کېږي.

شپږ شپې بيا دغسي سخت او ټينګ جنګ شروع وو. چي ډېري د خواشينۍ شپې راباندي تېري سوې. غذايي مواد هم مخ پر خلاصېدو وه، يوازې په شوله مو ګذاره کوله.

ټوله جنګ پنځلس ورځې مسلسل په بر کي ونيولې او د حکومت عسکر او خلقيان پر ټول ښار مسلط سول.

په دې سبا خلګ بازارو ته راووتل. دوکانونه ټول تړلي ول. سوځلي ټانګونه، سوځلي دوکانونه او وراني ويجاړې تر سترګو کېدلې.

په هرات کي زما په شان مسافر، له کابل څخه د پوهنتون محصلين او عسکر ډېر راغلي وه. اوس نو هر يو کوښښ کوي چي د هرات له ښاره ځان وباسي. د سټډيوم سره ۳۰۲ بسان ولاړ وه، د حکومت مامورين ورته ولاړ دي د هر نفر اسناد او قواره ښه تصفيه کېدل. بيا نو د تګ اجازه ورکول کېده. محصلينو، عسکرو او متعلمينو د تګ اجازه درلوده، بل چا ته اجازه نه وه. زما په تذکره کي هم متعلم ليکل سوی وو. که څه هم زه له مکتب څخه فارغه وم، يو هراتي معلم وو، دی خلقي وو. خپله تذکره مي ورښکاره کړه. ورته ومي ويل چي زه په کندهار کي متعلم يم اجازه راکړئ. دی د خلکو په اسنادو کي غرق او مصروف وو. ما ته ئې ږغ و نه کړ. دوهم وار بيا ما ورته وويل. ده تذکره راڅخه واخيسته بيا په خپلو کارو اخته سو. وروسته ئې زما تذکره په غور وکته او ما ته ئې وکتل. يو عسکر ته ئې ورږغ کړه ورته وئې ويل چي دی کش که. عسکر زه ټينګ کړم ول: درځه!

ما د تذکرې هڅه وکړه چي تذکره مي راکړي. عسکر په قنداغ ووهلم او په زور ئې کشولو ته مجبور کړم، ډېر مي وار خطا وو. د ځان سره مي ويل چي ولا ولاړې.

ځکه په پرون کي زما د يو شناخته کندهاري خياط دوکان ته ورغلی وم. هغه راته وويل چي د ځان سره احتياط کوه. هر ځوک چي حکومت اشتباهي ونيسي، پلانکي دښت ته ئې بيايي هورې ئې وژني. رشتيا هم دغسي وه، ځکه وروسته بيا معلومه سوه چي دوی ډېر خلګ اعدام کړي وه او اسماعيل خان چي کله واکمن سو، د هغو قبرونه ئې په هيندارو کي نيولي وه بيا طالبانو بيرته پټ کړل.

زه ئې د سټډيوم سره د پوليسو ماموريت ته



بوتلم او سرمامور ته ئې ورتسلیم کړم. یو څو کسه ئې نور هم زما په رقم راوستل. د پولیسو سرمامور موږ په یوه توره کوټه کي بندیان کړو. دلته نو د ماښام آذانونه شروع وه.

د پولیسو مامور څو واره د امنیه قوماندان سره تلیفوني اړیکی ونیو، او ورته وئې ویل چي دلته ئې څو کسه حزبي ملګرو راوستلي دي دا څه په وکړم؟ ممکن هغه ورته ویلي وه چي زه نفر د تحقیق له پاره در استوم. پسله یوه ساعته په موټر کي یو عسکري صاحب منصب راغی. قلم او کاغذ ورسره دي او د پکتیا د پښتنو څخه وو. اول ئې زما څخه پوښتني شروع کړې. ما خپل ټول حال ورته ووایه چي مالونه مي راوړي دي او دلې ئې خرڅوم.

ده فوري راته وویل چي څه تا ته اجازه ده ولاړ سه! ما هم بله نه ده کړې او نه مي تر شا کتلي دي رارهي سوم. کور ته مي ځان راورساوه. د کور خاوند ته مي د نن ټوله کیسه وکړه. هغه په خوشکه راته وویل چي ته څه کوې چي وزې، څه تلوار دي دئ. ځان په خطر کي مه اچوه.

زما تذکره د هغه خلقي هراتي معلم سره پاته سوه. ټوله شپه مي په خپله تذکره ګروم وو. ځکه د تلاښی پر مهال چي به چا تذکره نه درلوده پر هغه ئې د ایراني ټاپه وهل. حکومت اعلان کړی وو چي دا ایرانیان رااوښتي دي او په هرات کي ئې آشوب جوړ کړی دئ. ځکه په دې وخت کي د خمیني او تره کي مناسبات خراب وه. سبا مي ټوله ورځ د ستډیوم سره په هغه معلم پسي وکتل پیدا مي نه کی. په دا بله ورځ بیا ور ووتلم سرګردانه په هغه سړي پسي ګرځم پسله څه وخته یو څو کندهاریان چي دا هم حزبیان وه او ګزمه ئې کوله راباندي پېښ سول. تر روغبړ وروسته ئې ویل چي څه کوې؟

ما خپل ټول حال ورته ووایه. دوی ول ته راځه دا معلم راوښیه موږ به ستا تذکره ځني واخلو.

کندهاریان دي خدای لري د بل په وطن کي ئې وسیله او وطنداري خورا ډېره وي. په موټر کي ئې سپور کړم دا ټوله ورځ مو په هغه معلم پسي وکتل پیدا مو نه کړ.

دوی راته وویل سبا بیا موږ او ته پر دغه ځای سره غواړو. سبا سهار زه ورووتم. دوی مي پیدا کړل. هلته سره ولاړ وو هغه معلم مي هم ولیدی. دوی ته مي وروښووی. دوی ورغله او له هغه څخه ئې ډېري ګیلې وکړې چي تا زموږ انډیوال بندي کړی او تذکره دي هم ځني اخیستې ده.

ما ورته وویل نوري خبري پرېږدئ تذکره ځني راواخلئ. هغه ویل تذکره زما سره نسته ما قومندانۍ ته ورکړېده. هغو کندهاریانو ویل راځئ چي قوماندان د امنیې ته ورسو. په موټر کي ئې راسپور کړم سیده ئې د قومندان دفتر ته وروستم. د تذکرې مطالبه مي ځني وکړه. هغه ویل ما د اطلاعاتو شعبې ته ورکړېده. د اطلاعاتو په شعبه کي مو پسي وکتل تذکره نه وه او ورکه کړې ئې وه. د هرات د امنیې قومندان هم یو پښتون وو. هغه ویل چي یو تصدیق به ورجوړ کړو چي د ده تذکره زموږ څخه ورکه سوې ده تصدیق ئې راجوړ کړ او زه ئې رارخصت کړم.

په سبا د کندهار پر لور رارهي سوم. د شپې پر لس بجې د کندهار د ډنډ په چوک کي حکومتي مامورینو موټر راوګرځاوه. موټر ته راپورته سول اول ئې زما څخه د تذکرې پوښتنه وکړه. ما هغه تصدیق ورښکاره کړ. د نورو خلګو څخه ئې هم پوښتني کولې چا چي به تذکره نه درلوده. هغه ئې کښته کاوه. څو کسه ئې کښته کړل. دغه دوه کسه یو محمدرحمن کارګر د کندهار ښاروال وو، بل د شینواري په نامه د قبایلو رئیس وو. ډېر ظالمان خلک وه. په دې وخت کي د کندهار والي انجنیر ظریف وو، چي ډېر خونکار او بد سړی وو. دا یو باند وو چي د کندهار خلګ ئې ډېر په شهادت ورسول. کله چي ببرک کارمل واک ته ورسېدی، انجنیر ظریف ئې اعدام کړ.

د هرات د قیام د تلفاتو سهي ارقام نشر نه سول، مګر وروسته خلګو ویل چي ۲۵ زره کسه پکښي مړه سول.

دا عدد ما ته مبالغه آمېزه ښکاري. ممکن دوه زره کسه شهیدان سوي وي. هراتیان تر اوسه چي نن ئې ۳۵ کاله پوره سول دا ورځ په شانداره مراسمو سره لمانځي.



زه ولاړم ... تر غرو واوښتم، هولته ليري مي د ځان له پاره کوډغله جوړه کړه. هولته ليري، چي د غرو په لمن کي توري کږدۍ ولاړي دي.

دلته ږغ و ږوغ نسته، فضا خاموشه ده. پښتنې مېرمني د کږديو مخي ته کراري آرامي ناستي دي، او زه هره ورځ سهار وختي له دوی سره يو ځای د "پښتونوالي عالي روح" ته سلام کوم.

زما زړه اوس هم ستا په غم کي ناکراره دئ او ستا ملالي سترګي مي نه هېرېږي. تا چي هر څه کړي وي، خو ته بيا زما د زړه ټوټه يې! او کله چي ستا حال را په يادوم، زړه مي ايشي او د باران په څېر مي تر سترګو اوښکي تويېږي او له ځانه سره وايم:

قلبی یحــدثنی بانک متــلفی
روحی فداک عرفت ام لم تعرف
تر تا دي وګرزم زما ياره
ته نه پوهېږې په ماني دي ووژلمه

* * *

زما ږغ! هو زما ږغ نه مري، په فضا کي به سره ګرزي او آخر به ستا غوږ ته در ورسېږي. نن سهار هم غره ته ولاړم، د پسرلي نسيم ته مي خپلي اوښکي او د زړه درد وسپاره، آيا دا پيغام به تا ته در ورسوي؟

د دې غرو لړ ستا تر کوره پوري اوږد دئ، زما دا يقين دئ چي زما ږغ به په دغو تورو غرو کي ږغېږغه وکي او آخر به ستا غوږ ته درسي. اما ته مه قهرېږه! دا پيغام د "زړه درد" دئ. دا اوښکي قيمتي اوښکي دي. له باد سره يو ځای درځي، ګوندي تا به زهير نه کي ...

آيا ته د يوه مظلوم او ټرټلي مين ږغ نه سې اروېدلای؟

یک بار نالــه کــرده ام از درد اشــتیاق
از شش جهت هنوز صدا می توان شنید

د ميني په دنيا کي زما او ستا ډېري خبري وې! ما ستا په ډاډ ساړه نغري تاوده کړل. مړه اورونه مي بل کړه، مګر تا زه په خپله په هغه اور کي وسوم.

زما د ميني سلسله په تشو خبرو نه پوره کېده، کار او زحمت ئې غوښت. تا زما سره وعده وکړه، خو پر و نه ختې.

رقيبانو هغه زرينه سلسله وشلوله، او زما د عشق رابطه ئې هم ورسره پرې کړه. پر ما وطن اور سو او د رقيبانو پيغور هم راپسې وو. نه تا زما مرسته وکړه او نه بل چا ...

نو ځکه زه ځان ستا د تغافل او بېغورۍ شهيد بولم او تا ته نه يم پړ. اوس هم که ته په رشتيا راسره درېږي او تشي خبري نه کوې، زه هغه مين يم لکه چي وم ... اما!

از در دوست چه ګویم به چه عنوان رفتم
همه شوق آمده بودم همه حــرمان رفتم

